د حنفي مسلك والو د پاره يوه بې مثاله
تحفه
مدلل مونځ
چه پکښې د اودس او مونځ ضروري مسائل د قران مجيد او احاديثو
او اثارو په رڼا کښې بيان شوي دي. رفع يدين، قرأت خلف الامام،
شل رکعته تراويح او جمع بين الصلوتين په شانې ډير مشهور
مسائل تفصيل سره موجود دي
تاليف: مولانا فيض احمد صاحب ملتاني
پښتو ترجمه: مولانا سعيد الله جان صاحب
ناشر
مکتبه ديوبند
محله جنگي عقب قصه خواني پيښور ښار

د حنفي مسلک والو د پاره ډیر بې مثاله

تحفه

# مدلل مونځ

چه پکښې د اودس او مونځ ضروري مسائل د قرآن مجید او احادیثو او آثارو په رڼا کښې بیان شوي دي۔ رفع یدین، قرأت خلف الامام، شل رکعته تراویح او جمع بین الصلوتین په شان ډیر مشهور مسائل تفصیل سره موجود دي

تالیف مولانا فیض احمد صاحب ملتاني

پښتو ترجمه: مولانا سعید الله جان صاحب

ناشر

مکتبه دیوبند

محله جنگي عقب قصه خواني پېښور ښار

# فهرست د مضامینو د "مُدَلَّل مونځ"

بسم الله الرحمن الرحیم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهٗ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی مَنْ لَّا نَبِیَّ بَعْدَهٗ ، اَمَّا بَعْدُ :

## لاره ښودونکے اشارے

د اسلام په فروعی اختلافی او اجتهادی مسئلوکښې د آئمه اربعه رحمة الله علیهم (امام ابوحنیفهؒ، امام مالکؒ، امام شافعیؒ امام احمد بن حنبلؒ) اودنورو سلفو صالحینو اختلاف د حق اوباطل اختلاف نهٔ دے بلکه د راجح اومرجوح، اولیٰ اوغیر اولیٰ، او افضل اوغیرافضل اختلاف دے۔

دا فروعی اختلافات دصحابه کرامو رضی الله عنهم دزمانے نه راروان دی۔ په فروعی اختلافی مسئلوکښې تشدّد یعنی سختی اختیارول، دیوے ډلے بلے ډلے ته گمراه وئیل او ملامته کول او بد رد وئیل صحیح نهٔ دی۔ دے باره کښې دے لاندینی حدیث ته کتل پکار دی۔

① عَنْ اِبْنِ عُمَرَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ النَّبِیُّ صلی الله علیه وسلم لَمَّا رَجَعْنَا مِنَ الْاَحْزَابِ لَا یُصَلِّیَنَّ اَحَدٌ الْعَصْرَ اِلَّا فِیْ بَنِیْ قُرَیْظَةَ فَاَدْرَكَ بَعْضُهُمُ الْعَصْرَ فِی الطَّرِیْقِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا نُصَلِّیْ

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه کله مونږ دغزوهٔ خندق نه واپس شونو نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چه دبنو قُرَیظه محلّے ته د رسیدو نه وړاندے به هیڅوک دمازیگر مونځ نهٔ کوی۔ بیا په لاره کښې دمازیگر وخت راغے نو بعضو اووئیل چه

حَتّٰى نَأْتِيَهَا وَقَالَ بَعْضُهُمْ
بَلْ نُصَلِّيْ لَمْ يُرِدْ ذٰلِكَ مِنَّا
فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَلَمْ يُعَنِّفْ وَاحِدًا مِّنْهُمْ

مونږ چه بنو قريظه ته اُورسو نو د
مازيګر مونځ به کوو۔ او بعضو اُووئيل
چه مونږ (د لته) مونځ کوو۔ د نبي عليه السلام
دا مطلب نۀ وُو، چه مونځ قضا کړئ)
نو د دے اختلاف ذکر د نبي کريم صلى الله عليه وسلم مخکښ اُوشو۔ نو هغوي
هيڅوک ملامته نکړل۔"

(صحيح بخاري (ج ا ص ١٢٩) ابواب صلوٰة الخوف، مسلم کتاب الجهاد (ج ٢ ص ٩٦))

**تشريح** ذوالقعده ۵ه کښې د غزوهٔ احزاب نه پس نبي عليه السلام
د ما سپخين په وخت کښې صحابه کرامو رضي الله عنهم ته اُوفرمائيل چه
ديهودو قبيله بنو قريظه محلے ته زر ځان ورسوئ او د مازيګر
مونځ هم هلته اُوکړئ۔ د هغوي د غدارئ په وجه هغوي سره
جهاد کول دي۔ صحابه کرامؓ زر د بنو قريظه راګير ولو د پاره
روان شول۔ په لاره کښې د مازيګر مونځ قضا کيدلو نو په دے
باره کښې د صحابه کرامؓو اختلاف پيدا شو۔ نو بعضو د حديث
په ظاهر مفهوم باندِ عمل اُوکړو، د مازيګر مونځ ئے په لاره
اُونکړو بلکه بنو قريظه ته چه اُورسيدل نو هلته ئے قضا مونځ
اُوکړو۔ يا د بعضو شارحينو د حديث په نزد مونځ ئے د اول
وخت نه په آخر وخت کښې اُوکړو۔ او بعضِ حضرات د قران او
حديث د نورو نصوص په رڼا کښې د دے مقصد معلومولو
کوشش کړيدے او وئيلي ئے دي چه وخت باندِ مونځ کول فرض
دي۔ بغير د عذر نه مونځ قضا کول صحيح نۀ دي۔ د نبي عليه الصلوٰة والسلام

د ارشاد مقصد صرف دا وُ چه زر نه زر بنو قریظه ته د رسیدلو کوشش اُوکړئ - د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا مقصد نهٔ وُ چه مونځ قضا کړئ - نو دے حضراتو په لار کښې مونځ په خپل وخت سره اُوکړو او بنو قریظه ته لږ روستو اُورسیدل -

کله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د صحابه کرامو رض دا اختلاف معلوم شو نو هیڅ یَو بے ډلے ته ئے بد رَد اُو نهٔ وئیل بلکه په چُپ پاتے کیدو بانِدِ ئے هر یَو ډلے ته صحیح اُووئیله - (عمدة القاری شرح بخاری (ج ۶ ص ۲۶۲) طبع مصر و فتح الباری شرح بخاری (ج ۷ ص ۳۱۴))

اجتهادی مسئلو کښې عام طور د فکر او عمل اختلاف د ظاهری دلائلو او سرسری تعارض د وجے نه پیدا کیږی - او یا خو دَ یَو نص معنیٰ او مفهوم کښې د مختلف احتمالاتو په وجه سره پیدا کیږی - په دے ځائے کښې د اجتهاد دَ ټولو ضروری اوصافو [۱] او شرائطو والا مجتهد عالم ، اخلاص او صحیح نیت سره خپل ټول فکری او علمی او نقلی او عملی طاقتونه د صحیح او غلط په تحقیق کښې خرچ کوی - نو الله تعالیٰ په خپل فضل و کرم سره د دهٔ په خالص نیت او کوشش او محنت بانِدِ دے مجتهد ته په هر حالت کښې اجر او ثواب ورکوی - د هغهٔ د غه بے انتهاء کوشش او محنت قبلوی - برابره ده کهٔ دا خبره د مجتهد صحیح شی هم او کهٔ غلطی ترینه اُوشی هم -

---

[۱] د مجتهد ضروری اَوصاف دا دی: د قرآن د علومو ، د سنتو د علومو ، د فقے د علومو او د اُصولِ فقه د علومو ماهر عالم وی او د ائمه اربعه او د سلفو صالحینو د علمی تحقیقاتو او اجماعی مسئلو نه خبر داروی - د هغهٔ عقیده او عمل او اخلاق د کتاب او سنت مطابق وی ، متقی او پرهیزګار وی ، (عقد الجید حضرت شاه ولی الله رح ، نور الانوار (ص ۲۴۶) و حواشیه)

دے خبرے د پاره دالاندینی نصوص اوګورئ۔ دالله تعالیٰ ارشاد دے:

(۲) لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا۔ (البقرہ آیت ۲۸۶) — الله تعالیٰ هیڅ یو بنده باندې د هغه د وَس او طاقت نه زیات بوج نهٔ اچوی۔

(۳) د حضرت عبد الله بن عمر او حضرت ابُوهُریره رضی الله عنهما دواړو بزرګانو نه دا مرفوع[۱] حدیث روایت شوی دے۔

قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ وَأَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ وَأَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ وَاحِدٌ۔ (بخاری (ج ۲ ص ۱۰۹۲) باب اجر الحاکم اذا اجتهد، مسلم (ج ۲ ص ۷۶))

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله حاکم د فیصلے کولو په وخت کښې اجتهاد اُوکړی او صحیح فیصله اُوکړی نو هغهٔ د پاره دوه اَجرونه دی او کهٔ چرے د فیصلے کولو په وخت کښې اجتهاد اُوکړی او هغه غلط شی نو هغهٔ د پاره یو اَجر دے۔

**فائده:-** په هر حالت کښې مجتهد ته اجر ملاویږی او د هغهٔ محنت مقبول وی۔ بیا چه کوم حکم د مجتهد دے هم هغه حکم د هغهٔ د مُتّبعینو دے چه د هغوی عمل مقبول دے او سبب د اَجر دے۔

## د اسلامی احکامو ماٰخذ او دلائل

د الله جل جلالهٗ ارشاد دے۔

(۴) ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ — دا کتاب دے (قرآن مجید) په دیکښې

---

[۱] "مرفوع حدیث" د محدثینو په اصطلاح کښې هغه حدیث ته وائی چه د کوم حدیث سند رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې ختم شوے وی او په هغے کښې د نبی علیه السلام د قول یا فعل یا حال ذکر وی او کهٔ چرے د حدیث سند په صحابی باندې ختم وی او په هغے کښې د صحابی د قول یا فعل یا حال ذکر وی نو هغے ته "موقوف" وائی۔ او کهٔ چرے د حدیث سند په تابعی باندې ختم وی او په هغے کښې د تابعی د قول یا فعل یا حال ذکر وی نو هغے حدیث ته مقطوع وائی۔ (شرح نخبة الفکر ص ۱۰۴)

فِيهِ ۛ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ۝ (البقرہ : ۲)

هیڅ شک نشته، د الله نه ویریدونکو دپاره هدایت دے۔

(۵) شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِّلنَّاسِ ۝ (البقرہ ۱۸۵)

میاشت د رمضان چه قرآن پکښې نازل شویدے۔ د خلقو دپاره دا (قرآن) هدایت دے۔

(۶) لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ (احزاب ۲۱)

بیشکه تاسو دپاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم ژوند کې بهترینه نمونه ده۔

(۷) وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا۔ (سورة حشر ۷)

او رسول الله صلی الله علیه وسلم چه څهٔ تاسو ته درکوی هغه کوئ او د کوم څیز نه چه تاسو منع کوی هغې نه منع شئ۔

(۸) مَّن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ ۝ (النساء ۸۰)

چه چا د رسول الله صلی الله علیه وسلم تابعداری اوکړه نو هغهٔ د الله تعالیٰ تابعداری اوکړه

(۹) وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ ۖ (نساء : ۱۱۵)

او څوک چه د هدایت واضحه کیدلو نه پس د رسول الله صلی الله علیه وسلم مخالفت اوکړی او د ایمان والو لارے نه بغیر بله لار اختیار کړی نو چه کومه لاره باندې ځی نو مونږ به ئے هم هغه لاره باندې پریږدو او هغه به مونږ دوزخ کښې داخل کړو۔

فائده:- دے آیتِ کریمه نه د اِجماع حجّیت ثابتیږی۔

(۱۰) وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ

په اولنو مهاجرینو او انصارو کښې رومبنی ایمان راوړونکی او هغه

وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ تَحْتَهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا أَبَدًا ۭ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝ (توبہ: ١٠٠)

کسانو نه چه په اخلاص سره ئے ددوی تابعداری کړیده - نو الله تعالیٰ ددوی نه راضي دے او دوی د الله تعالیٰ نه راضي دی او الله تعالیٰ ددوی دپاره داسے باغونه تیار کړیدی چه دهغے د لاندے روان نهرونه دی او دوی به پکښ همیشه دپاره اوسیږی او دالویه کامیابی ده -"

فائده :- ددے ایت نه داثابته شوه چه دصحابه کرامو رض تابعداری دالله تعالیٰ د رضا سبب دے، جنت ته د داخلیدو سبب دے او لویه کامیابی ده - په دے وجه صحابۂ کرام رض معیارِ حق دی -

(١١) فَاعْتَبِرُوْا يٰٓاُولِي الْأَبْصَارِ ۝ (حشر ٥٩/٢)

اے هوښیار انو عبرت حاصل کړئ -

فائده :- ددے ایت نه دقیاس شرعي حجت کیدل ثابت شو -

(١٢) دنبي کريم صلى الله عليه وسلم ارشاد دے او دحضرت مالک بن انس رضي الله عنه مرسل روایت دے -

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم تَرَكْتُ فِيْكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوْا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا كِتَابُ اللّٰهِ وَسُنَّةُ رَسُوْلِهٖ -
(مشکوٰة ص ٣١، موطا امام مالک رح)

نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائیلي دی چه ځه په تاسو کښ دوه څیزونه پریږدم چه ترڅو پورے تاسو په هغے کلک عمل کوی نو هیڅکله به تاسو ګمراه نشئ - یو د الله تعالیٰ کتاب او دویم د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنت

(١٣) دحضرت عرباض بن ساریه رضي الله عنه نه مرفوع حدیث نقل دے -

عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائیلي دی چه تاسو

الْخُلَفَآءِ الرَّاشِدِيْنَ الْمَهْدِيِّيْنَ تَمَسَّكُوْا بِهَا وَعَضُّوْا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ۔ (ابوداؤد (ج ۲ ص ۱۶۲) ابن ماجة، مسند امام احمد بن حنبلؒ مشکوٰة (ص ۲۹))

طریقه او ځما د هدایت یافته خلفاءِ راشدین طریقه مضبوطه اونیسئ، په دے باندِ عمل کوئ او په جامنو یعنی غاښونو کښ ئے مضبوط اُونیسئ۔

❋ ❋ ❋ ❋ ❋ ❋

**فائده :-** د دے حدیث نه د خلفاءِ راشدینؓ معیارِ حق او د هغوی قول او فعل شرعی حُجّت کیدل ثابتیږی۔

(۱۴) د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه مرفوع حدیث دے۔

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم ..... مَا اَنَا عَلَيْهِ وَاَصْحَابِیْ۔ (ترمذی ج ۲ ص ۸۹) مشکوٰة (ص ۳۰)۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو اُوږد حدیث کښ ارشاد فرمائی (نجات موندونکی خلق هغه دی) چه ځما او ځما د صحابو په طریقه باندِ قائم وی۔

❋ ❋ ❋ ❋ ❋

**فائده :-** د دے حدیث شریف نه د اَهلِ سنت اوجماعت نوم او د دوی نجات والا او په حق باندِ کیدل ثابتیږی۔

(۱۵) د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم اِنَّ اللهَ لَا يَجْمَعُ اُمَّتِیْ اَوْقَالَ اُمَّةَ مُحَمَّدٍ عَلٰی ضَلَالَةٍ وَيَدُ اللهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ وَمَنْ شَذَّ شُذَّ فِی النَّارِ۔ (ترمذی ج ۲ ص ۳۹، مشکوٰة ص ۳۰)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه بیشکه الله تعالیٰ ځما اُمت، یا ئے اُوفرمائیل چه اُمت د محمد (صلی الله علیه وسلم) په گمراهئ باندِ جمع نکړی۔ د الله تعالیٰ (د حفاظت) لاس په جماعت باندِ دے او څوک چه د جماعت نه جُدا شو هغه د دوزخ په اُور کښ جُدا شو۔"

**فائده**:- د دے حدیث نه د اجماع اُمت حجیّت ثابتیږی۔

(۱۶) د حضرت عبد الله بن عُمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے۔

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِتَّبِعُوا السَّوَادَ الْاَعْظَمَ فَاِنَّهُ مَنْ شَذَّ شَذَّ فِي النَّارِ۔ (ابن ماجة، مشكوٰة ص۳۰)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دلوئے او غټ جماعت تابعداری کوئ، ځوك چه د جماعت نه جُدا شوهغه د دوزخ په اُور کښں جدا شو۔

(۱۷) د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

يَقُوْلُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اُمَّتِيْ لَا تَجْتَمِعُ عَلٰى ضَلَالَةٍ فَاِذَا رَاَيْتُمُ اخْتِلَافًا فَعَلَيْكُمْ بِالسَّوَادِ الْاَعْظَمِ (ابن ماجة ص۲۹)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه بیشکه زما اُمت به په گمراهئ باندِ نه جمع کیږی۔ نو کله چه تاسو اختلاف اُووینئ نو د سوادِ اعظم تابعداری کوئ۔

(۱۸) د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ وَالْعَامَّةِ۔ (مسند امام احمد بن حنبل رح، مشكوٰة ص۳۱)۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه په جماعت او جمهور ومسلمانانو پورے لازم اُوسیږئ۔

(۱۹) د حضرت ابُو ذر غِفّاری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْاِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهٖ۔ (ابوداؤد (ص۲۴۷ ج۲)، مسند احمد، مشكوٰة ص ۳۰)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه ځوك (د مسلمانانو) د جماعت نه یو لیشت برابر هم جُدا شو نو هغهٔ د اسلام د رسئ نه خپل څټ بهر اُوویستلو۔

فائده :- ددے احادیثو مطلب دا دے چه په عقائدو اونظریاتو کښې، په اعمالو او اخلاقو کښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم دجماعت سره کیدل پکار دی - او دهغوی تابعداری کول پکار دی او ددوی نه پس دجمهور علماؤ سره یا تے کیدل پکار دی چه د سُنت او دَ صحابو دجماعت تابعدار دی - دجمهورو، سَلف صالحینو نه جُدا دله بازی اوگروه بندی نه بیخ کیدل پکار دی -

(۲۰) دحضرت مُعاویه رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُّفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ - (بخاری ج۱ ص۱۶، مسلم، مشکوٰة ص۳۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه الله تعالیٰ چا ته خیر رسول وغواړی نو هغه ته په دین باندِ پوهه ورکړی -

(۲۱) دحضرت عمران بن حُصین رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ اُمَّتِيْ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ - (بخاری شریف ج۱ ص۵۱۵، مسلم ج۲ ص۳۰۹، مشکوٰة ص۵۵۳)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د ټولو نه غوره خلق ځما دزمانے خلق دی - بیا چه څوک دوی سره نزدے دی بیا هغه خلق چه ددوی سره نزدے دی -

داحدیث په مسلم شریف کښې دحضرت ابن مسعود او حضرت اَبُوهریره رضی الله عنهما نه هم روایت شوے دے -

فائده :- په دے حدیث کښې دصحابه کرامو، تابعینو او د تبع تابعینو دفضیلت او دهغوی د آثارو او اقوالو او افعالو غوره والے او حجیّت طرفته اشاره ده -

(٢٢) د حضرت حذیفه رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم اِقْتَدُوْا بِالَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِيْ اَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ رض۔ (ترمذی ج۲ ص۲۰۷ مشکوٰة ص۵۶۰ ابواب المناقب۔)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه څما نه پس د حضرت ابوبکر او حضرت عمر (رضی الله عنهما) تابعداری کوئ۔

(٢٣) د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم اِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ الْحَقَّ عَلٰى لِسَانِ عُمَرَ رض وَقَلْبِهٖ۔ (ترمذی ج۲ ص۲۰۹، مشکوٰة شریف ص۵۵۷ مناقب عمر رض)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه الله تعالیٰ د حضرت عمر بن خطاب په ژبه او زړه باندې حق ایخودے دے۔

فائده:- دا حدیث د حضرت عمر رضی الله عنه په صحیح رائے باندې د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یوه مضبوطه گواهی ده۔

(٢٤) د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم لَمَّا بَعَثَهٗ اِلَى الْيَمَنِ قَالَ كَيْفَ تَقْضِيْ اِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ قَالَ اَقْضِيْ بِكِتَابِ اللّٰهِ قَالَ فَاِنْ لَّمْ تَجِدْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ قَالَ فَبِسُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ فَاِنْ لَّمْ تَجِدْ فِيْ سُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ اَجْتَهِدُ رَأْيِيْ وَلَا اٰلُوْ قَالَ

کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ رضی الله عنه لره یمن ته لیږلو، نو نبی علیه السلام د حضرت معاذ رض نه تپوس اُوکړو چه کله تا ته یوه معامله راشی نو ته به د هغې فیصله څنګه کوے؟ حضرت معاذ رض عرض اُوکړو چه زه به په کتاب الله یعنی قرآن پاک باندې فیصله کوم۔ نبی علیه السلام اُوفرمائیل، که چرے تا ته په قرآن کښې د هغې حکم ملاؤ نشی

فَضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى صَدْرِهٖ وَقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَفَّقَ رَسُوْلَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَا يَرْضٰى بِهٖ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۔

۱: ترمذی (ص ۱۵۹ ج ۱)

۲: ابوداود (ص ۵۰۵ ج ۲)

۳: مسند احمد (ص ۲۳۰ ج ۵)

۴: مسند دارمی (ص ۲۴)

۵: مشکوٰة (ص ۳۲۴) باب العدل فی القضاء۔

(نو بیا به په څهٔ فیصله کوے؟) نو حضرت معاذ رض ورته عرض اوکړو چه بیا به دَ سُنّتِ رَسُوْلؐ مطابق فیصله کؤم. نو نبی علیه السلام ورته اُوفرمائیل کهٔ چرے تا ته په سُنتِ رَسُوْل اللهؐ کښې هم حکم ملاؤ نشی؟ نو بیا حضرت مُعاذ رض عرض اُوکړو چه بیا به خپلے رائے سره اجتهاد کؤم او هیڅ کوتاهی به نهٔ کؤم. حضرت مُعاذ رض فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خما دا جواب واوریدو نو خما په سینه باندِ ئے لاس مبارک رابشکلو او وے فرمائیل چه د الله تعالیٰ لاکهٔ لاکهٔ شکر دے چه هغهٔ د خپل پیغمبرؐ قاصد ته د هغه خبرے توفیق ورکړو چه کوم د هغهٔ رَسُوْل خوښوی۔"

**فائده:**۔ د دے حدیث مبارک نه یو څو خبرے معلومے شوے۔

۱: د اسلامی احکامو اول ماخذ قرانِ پاک دے۔

۲: د دے نه پس د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سنت دی۔

۳: کومه مسئله چه په قران او حدیث کښې منصوص او صراحتًا موجود نهٔ وی نو د هغے مسئلے معلومولو دپاره د اِجتهاد ضرورت دے۔

۴: د قران او حدیث منصوص احکامو کښې د رائے او اِجتهاد جواز نشته دے۔

۵: مجتهد دپاره د قران او حدیث ماهر کیدل او د هغے علوم او

احکامو باندِ مکمل عِلم ضروری دے۔

(۲۵) د حضرت عائشے رضی اللہ عنہا مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ مَنْ اَحْدَثَ فِیْ اَمْرِنَا ھٰذَا مَا لَیْسَ مِنْہُ فَھُوَ رَدٌّ۔
(بخاری ج۱ ص۳۷۱، کتاب الصلح، مسلم ج۲ ص۷۷، مشکوٰۃ ص۲۷)

د رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد مبارک دے چہ چا څوک پہ دین کښې داسے خبرہ راووېستہ چہ ھغہ پہ دین کښې نۂ وہ نو ھغہ مَردود دہ۔

**فائدہ:-** د دے حدیث شریف نہ دا ثابتہ شوہ چہ کومہ خبرہ د نبی علیہ السلام د لاړلو سرہ ثابتہ نۂ وی، ھغے تہ دین وئیل بدعت او گمراھی دہ۔ ھغہ خبرہ او د ھغے کوونکے مَردود دے۔

**حاصل د کلام**

د دے ذکر شوی آیتونو او احادیثو حاصل دا دے چہ د دے احکامو ماخذ او دلائل دا دے:

۱: قرآن مجید۔ ۲: احادیث د رسُول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم۔ ۳: اِجماع اُمّت

۴: د خُلفائے راشدینو آثار (اقوال، افعال او احوال)

۵: د خیرُ القرُون (صحابوؓ، تابعینوؒ او تبع تابعینوؒ) آثار۔ ۶: د علم او فِقے خاوندان او د علم او تقوٰی والا شرعی قیاس او اِجتہاد۔

**طھارت**

پہ اسلام کښې د صفائی او پاکوالی ډیر زیات اھمیت دے۔

(۲۶) د اللہ تعالیٰ ارشاد دے:

اِنَّ اللّٰہَ یُحِبُّ التَّوَّابِیْنَ وَیُحِبُّ الْمُتَطَھِّرِیْنَ ۝
(البقرہ: پ۲ ع۲۲۲)

بیشکہ اللہ تعالیٰ توبہ ویستونکو سرہ محبت کوی او پاکو خلقو سرہ محبت کوی۔

مدینې منوّرې سره نژدې مسجدِ قُبا کښې اُوسیدونکو ایمان والو
په تعریف کښې الله تعالیٰ فرمائیلی دی :

(۲۷) فِیْهِ رِجَالٌ یُّحِبُّوْنَ اَنْ یَّتَطَهَّرُوْا ؕ وَاللّٰهُ یُحِبُّ الْمُطَّهِّرِیْنَ ۝ (توبه : ۱۰۸/۹) په دې جمات کښې داسې خلق دي چې هغوی پاکی خوښوی او الله پاک پاکو خلقو سره محبت کوی۔

(۲۸) دحضرت اَبُومالك اشعری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :
قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی
اَلطُّهُوْرُ شَطْرُ الْاِیْمَانِ۔ چه پاکوالے د ایمان یوه حِصه ده۔
(مسلم ج۱ ص۱۱۸، مشکوٰة ص۳۸)

(۲۹) دیو مرفوع حدیث الفاظ دی :
اَلطُّهُوْرُ نِصْفُ الْاِیْمَانِ۔ چه صفائی نیم ایمان دے۔
(ترمذی ص۱۹۰، ج ۲، ابواب الدعوات)

شریعت د صفائی او پاکوالی باره کښې د اِستنجاء، اَودس، غُسل، کپړو او د ځائی پاك ساتلو ډیر تاکید کړید ے۔

## د قضاء حاجت او اِستنجاء آداب

دحضرت اَبُو اَیُّوب اَنصاری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے۔

(۳۰) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رَسُوْلُ الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله
اِذَا اَتَیْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوْهَا۔ تاسو قضاءِ حاجت دپاره کینئ نو قبلې ته مخ مه کوئ او مه ورته شا کوئ
(بخاری ج۱ ص۵۷، باب قبلة اهل المدینة، مسلم ج۱ ص۱۳۰ باب الاستطاب، مشکوٰة ص۴۲)

(۳۱) دحضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :
قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَسُوْلُ الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله

اَتٰی اَحَدُکُمُ الْغَائِطَ فَلَا یَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلَا یَسْتَدْبِرْهَا۔ (ابوداؤد ص۳ ج۱، نسائی، ابن ماجه، مسند احمد)

تا سو قضائے حاجت دپاره کیني نو نهٔ به قبلې ته مخ کوئ او نهٔ به ورته شا کوئ۔

(۳۲) د حضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

کَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَرَادَ الْحَاجَةَ لَمْ یَرْفَعْ ثَوْبَهٗ حَتّٰی یَدْنُوَ مِنَ الْاَرْضِ۔ (ابوداؤد ص۳ جلد۱، ترمذی، دارمی مشکوٰة ص۴۲)

چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم به کله دقضائے حاجت اراده اُوکړه نوخپله کپړه (جامے) به یے نهٔ اُوچتوله ځو پورے چه به زمکے ته نزدے شوے نهٔ وُو۔

(۳۳) د حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

نَهَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ لِغَائِطٍ اَوْ بَوْلٍ اَوْ اَنْ نَسْتَنْجِیَ بِالْیَمِیْنِ اَوْ اَنْ نَسْتَنْجِیَ بِاَقَلَّ مِنْ ثَلٰثَةِ اَحْجَارٍ اَوْ اَنْ نَسْتَنْجِیَ بِرَجِیْعٍ اَوْ بِعَظْمٍ۔ (مسلم ج۱ ص۱۳۰، مشکوٰة ص۴۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ منع کړی یُو چه د اَودس ماتولو په وخت کښ مونږ قبلې ته مخ کړو، یا په ښی لاس اِستنجاء اُوکړو، یا د درېو لوټو نه په کمو باندِ ځان پاک کړو او یا په خاشړو او یا په هډوکی سره ځان پاک کړو۔ (دد نه مونږ منع کړے شوی یُو)

(۳۴) د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْیُوْتِرْ مَنْ فَعَلَ فَقَدْ اَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ۔ (ابوداؤد ص۶ ج۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، څوک چه په لوټو سره ځان پاکوی نو طاق یعنی درے لوټے دِ استعمال کړی۔ چا چه دا سے اُونکړه نو هیڅ باک نشته۔

مشکوٰة ص۴۳، ابن ماجه، مسند دارمی)

**فائده:** دوے حدیث نه دا ثابته شوه چه درے لټو باندِ ځان پاکول حکم اِستحبابی دے لیکن دیلیتیٔ نه ځان پاکول ضروری او لازمی دی۔

(۳۵) دحضرت ابُوهُرَیره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِتَّقُوا اللَّاعِنَیْنِ قَالُوْا وَمَا اللَّاعِنَانِ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الَّذِیْ یَتَخَلّٰی فِیْ طَرِیْقِ النَّاسِ اَوْ فِیْ ظِلِّهِمْ۔

(مسلم ص۱۳۲ ج۱، مشکوٰة ص۴۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د لعنت د دوؤ خبرو نه ځان اوساتئ صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه هغه دوه خبرے کومے دی؟ وے فرمائیل چه عامه لاره کښِ متیازے کول او لاره کښِ سوری باندِ متیازے کول۔

**فائده:** دحدیث شریف مقصد دادے چه په کوم ځائے خلق کینی، هلته وړے اولوئے متیازے نه کول چه خلقو ته تکلیف نۀ وی۔ دیخنیٔ په موسم کښِ خلق نمر ته کینی۔ نوچه نمر ته کوم ځائ خلق کینی او ارام کوی هلته هم متیازے کول منع دی۔

(مرقات شرح مشکوٰة ص۳۵۱ ج۱)

(۳۶) دحضرت ابُوقتاده رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتَی الْخَلَاءَ فَلَا یَمَسَّ ذَکَرَهٗ بِیَمِیْنِهٖ وَلَا یَتَمَسَّحْ بِیَمِیْنِهٖ

(بخاری ص۲۷ ج۱، مسلم ص۱۳۱ ج۱، مشکوٰة ص۴۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله څوك متیازے کوی نو ښی لاس به شرمګاه سره نۀ لګوی اونۀ به په ښی لاس استنجاء کوی۔

(۳۷) دحضرت ابُوهُرَیره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ مَنْ اَتَی الْغَائِطَ فَلْیَسْتَتِرْ۔ (ابوداؤد ج۱ ص۶، مشکوٰۃ ص۴۳، ابن ماجہ، دارمی)

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چہ څوک اودس ماتی دپارہ ځی نو پردہ دِ کوی۔

(۳۸) د حضرت عبد اللہ بن سرجس رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ لَا یَبُوْلَنَّ اَحَدُکُمْ فِیْ جُحْرٍ۔ (نسائی ج۱ ص۱۵، ابوداؤد، مشکوٰۃ ص۴۳)

رسولِ اکرم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چہ پہ تاسو کښ هیڅ یو کس دِ هم پہ سوری کښ متیازے نہ کوی۔

(۳۹) د حضرت جابر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

نَهٰی رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اَنْ یَّبُوْلَ الرَّجُلُ قَائِمًا۔ (بیہقی ج۱ ص۱۰۲)

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم پہ ولاړہ متیازے کولو نہ منع فرمائیلے دہ۔

(۴۰) د حضرت انس رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

کَانَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ یَسْتَنْجِیْ بِالْمَآءِ۔ (بخاری ج۱ ص۲۷)

رسولِ اکرم صلی اللہ علیہ وسلم بہ اوبو سرہ استنجاء کوله۔

**فائدہ:** لټو سرہ د استنجاء کولو حدیث مخکښ بیان شویدے صرف اوبو سرہ استنجاء کول صحیح دی او صرف لټو سرہ استنجاء کول هم جائز دی۔ لیکن اوبو او لټو دواړو سرہ استنجاء کول غورہ دی۔ (عمدۃ القاری ج۲ ص۲۹)

## بیتُ الخلاء تہ د تلو دُعا

د حضرت زید بن ارقم رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

(۴۱) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتٰی اَحَدُکُمُ الْخَلَآءَ فَلْیَقُلْ اَعُوْذُ بِاللّٰہِ مِنَ الْخُبُثِ وَ

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چہ پہ تاسو کښ څوک قضائے حاجت دپارہ لاړشی نو دا دُعا دِ اُووائی: اَعُوْذُ

وَالْخَبَائِثِ (ابوداؤد ج۱ ص۳، مشکوٰة ص۴۲)

بِاللّٰهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ۔ "د خبيث پيريانو سرو او ښځونه په الله تعالىٰ سره پناه غواړم۔"

* * * *

## بيتُ الخلاء نه د وتلو دُعا

د حضرت عائشې رضي الله عنها مرفوع حديث دے:

(۴۲) كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ غُفْرَانَكَ۔ (ترمذی ج۱ ص۳، ابن ماجه دارمی، ابوداؤد، نسائی، مشکوٰة ص۴۳)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه به کله د بيت الخلاء نه بهر وتلو نو دا دُعا به ئے وئيله: غُفْرَانَكَ۔ "اے الله! ستا نه بخښنه غواړم۔"

## دويمه دُعا

د حضرت انس رضي الله عنه مرفوع حديث دے:

(۴۳) كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَذْهَبَ عَنِّي الْاَذٰى وَعَافَانِيْ۔ (ابن ماجه ص۲۶، مشکوٰة ص۴۳)

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به كله د بيت الخلاء نه بهرته وتلو نو دا دُعا به ئے وئيله: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَذْهَبَ عَنِّي الْاَذٰى وَعَافَانِيْ۔ "ټول تعريفونه خاص الله تعالىٰ دپاره دی چه هغه ځما نه د تكليف شيزلرے كړو او ما ته ئے صحت راكړو۔"

**فائده:** دا حديث د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه هم په نسائی كښې روايت شويدے (مرقات ج۱ ص۳۶۸) غوره او بهتره دا ده چه دواړه دُعاگانے اُووئيلے شی۔ اول غُفْرَانَكَ او بيا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَذْهَبَ عَنِّي الْاَذٰى وَعَافَانِيْ اُووايئ۔ (مرقات ص۳۶۶ ج۱)

## د اودس فرضيت

اودس د الله تعالىٰ په دربار كښې د حاضرئ وركولو او د مونځ كولو دپاره ډيره ضروری ادب دے

(۴۴) د الله تعالیٰ ارشاد دے :

يَآاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ (المائدہ ۵ / ۶)

اے ایمان والو! چہ کلہ تاسو اودس کوئ نو خپل مخونه او دواړه لاسونه ترخنګلو پورے او خپل سرونو باندِ مسح کوئ او خپے ترګیټو پورے اُووینځئ۔

(۴۵) د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلٰوةُ مَنْ اَحْدَثَ حَتّٰى يَتَوَضَّاَ ۔ (بخاری ج ۱ ص ۲۵

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د بے اودسه مونځ نه قبلیږی ترڅوچه اودس اُونکړی۔

باب لا تقبل صلوة بغیر طهور، مسلم ج ۱ ص ۱۱۹، باب وجوب الطهارة للصلوٰة، مشکوٰة ص ۴۲)

(۴۶) د حضرت ابن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلٰوةٌ بِغَيْرِ طُهُوْرٍ ۔ (مسلم ج ۱ ص ۱۱۹، مشکوٰة ص ۴۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د پاکوالی نه بغیر مونځ نه قبلیږی۔

(۴۷) د حضرت علی کرم الله وجهه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِفْتَاحُ الصَّلٰوةِ الطُّهُوْرُ ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د مونځ کُنجی پاکوالے دے :

(ابوداود ج ۱ باب فرض الوضوء، ابن ماجه، مسند دارمی، مشکوٰة ص ۴۲)

## د اودس نیت

نیت د زړهٔ د اِرادے نوم دے۔ د اودس ثواب د هغے په نیت باندِ موقوف دے۔

(۴۸) د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّیَّاتِ (بخاری ج۱ ص۲، مسلم ج۲ ص۱۴۰، مشکوٰة ص۱۱)

رسولِ اکرم صلی اللہ علیہ وسلم فرما ئیلی دی چہ دعملونو دارومدار پہ نیتونو باندِ دے۔

**فائدہ:-** اُوبۂ طبعی او پیدائشی پاکونکے څیز دے ځنګہ چہ د اللہ تعالیٰ ارشاد دے:

وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوْرًا۔ (فرقان پ۱۹)

مونږ د آسمان نہ پاکونکے اُوبۂ نازلے کړیدی۔

همدارنګه د خلقو مشاهده دہ چہ د اُوبو اِستعمالَولو سره پلیتی لرے کیږی او پلیتی لرے کولو تہ پاکوالے وائی۔ ددے وجے نہ دَ اُوبو پاکول او د پلیتئ لرے کول یَو عام لیدونکے حقیقت دے۔ کلہ چہ هم پاکے اُوبۂ استعمال شی نو د اُوبو فطرت داد ے چہ پلیتی پاکوی کہ د پاکوالی ارادہ وی او کہ نہ وی ځنګہ چہ ګندہ کپړه او ګندہ ځائے پہ اُوبو سره اُووینځلے شی نو د ټولو پہ اتفاق سره هغه پاک شی، خواه کہ د پاکوالی نیت وی او کہ نہ وی۔ همدارنګ د اَحنافو پہ نزد کہ بغیر د نیت نہ اَودس اُوکړے شی نو اَودس صحیح دے او پہ دے اَودس سره بہ مونځ کول صحیح شی لیکن ددے ذکر شوی حدیث پہ بناء د اَودس ثواب بہ نہ ملاویږی۔ د اعمالو ثواب پہ نیت باندِ موقوف دے۔

## اَودس بِسْمِ اللّٰه سره شروع کول

دحضرت ابوهریرة رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

(۴۹) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَا اَبَا هُرَیْرَةَ اِذَا تَوَضَّأْتَ

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم اُوفرمائیل، اے اَبُوهر[illegible] کلہ تہ اَود[illegible]

فَقُلْ بِسْمِ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ۔ نو بِسْمِ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وایه۔

(طبراني صغير، قال الهيثمي اسناده حسن، آثار السنن ص ۳۵، قال العيني اسناده حسن السعاية ج

فائده :- غوره داده چه پوره بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اُووئیلے شي

(فتح القدير ج ۱ ص ۱۹، كفاية شرح هداية ج ۱ ص ۱۹، شرح المهذب للنووي ج ۱ ص ۳۴۴)۔

(۵۰) د حضرت ابو هريره رضي الله عنه مرفوع حديث دے :

أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ أَمْرٍ ذِيْ بَالٍ لَا يُبْدَأُ بِبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ فَهُوَ أَقْطَعُ۔ (صحيح ابن حبان)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دي چه هر اهم کار شروع چه بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ سره اُونشي نو هغه کار بے برکته وي.

(فتح القدير شرح هداية ج ۱ ص ۲، نووي شرح مسلم ج ۱ ص ۲، شرح المهذب ج ۱ ص ۳۳۷)

(۵۱) د حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه مرفوع حديث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا وُضُوْءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دي چه د هغه سړي اودس اُونه شو چا چه په اودس د الله پاك نوم یاد نکړو

(ترمذي ج ۱ ص ۶، ابن ماجه، مشكوٰة ص ۴۶)

فائده :- په دے حديث کښ "لَا وُضُوْءَ" د کامل اودس نفي کړیده شغنګه چه "لَا صَلٰوةَ لِجَارِ الْمَسْجِدِ اِلَّا فِي الْمَسْجِدِ" (د جمات سره نزدے اوسیدونکی مونځ نه کیږي مګر په جمات کښ) د لا صلوة نه د کامل مونځ نفي مراد ده۔

لاندینی احادیث د دے د تشریح او توضیح بسکاره دلیل دے

(۵۲) (۵۳) (۵۴) د حضرت ابوهريره، حضرت ابن مسعود او حضرت ... رضي الله عنهم د رے واړو بزرګانو نه مرفوع حديث روایت شویدے

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ وَ ذَكَرَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ فَإِنَّهُ يُطَهِّرُ جَسَدَهُ كُلَّهُ وَمَنْ تَوَضَّأَ وَلَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ لَمْ يُطَهَّرْ إِلَّا مَوْضِعَ الْوُضُوْءِ. (دار قطني ص۷۲ ج۱، ۳۷ باب التسمية على الوضوء، بيهقي ص۴۴ ج۱، مشكوة ص۴۷)

نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چہ څوک اَودس اُوکړی او د اللہ نوم واخلی (بِسْمِ اللہ اُووائی) نو هغه خپل ټول بدن (د ګناهونو نه) پاک کړی او څوک چه اودس اُوکړی او د اللہ نوم وانخلی نو هغه صرف د اَودس ځایونه (اعضاء) پاک کړی۔

(۵۵) د حضرت ابُوبکر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ الْعَبْدُ فَذَكَرَ اسْمَ اللّٰهِ طَهَّرَ جَسَدَهُ كُلَّهُ وَإِنْ لَمْ يَذْكُرْ لَمْ يُطَهَّرْ إِلَّا مَا أَصَابَهُ الْمَاءُ. (مصنف ابن ابی شیبہ ص۳ ج۱، زجاجۃ المصابیح ص۹۸ ج۱)

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه کله بنده اَودس کوی او د اللہ تعالیٰ نوم واخلی نو هغه خپل ټول بدن پاک کړی او کله چرے دغه بنده د اللہ نوم وانخلی نو د هغه صرف هغه ځایونه پاک شی چه کوموته اُوبه رسیدلے دی۔

**فائده:-** د دے حدیثونو نه دا معلومه شوه چه که بِسْمِ اللہِ اُونه وائے نو هم اَودس کیږی لیکن ناقص وی۔ همدارنګه په دے اَودس سره د ټول بدن ګناهونه نه معاف کیږی بلکه صرف د اَودس د اندامونو ګناهونه معاف کیږی۔

## دَ اَودس طریقه

(۵۶) اَنَّ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دَعَا بِوَضُوْءٍ فَتَوَضَّأَ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ مَضْمَضَ

خلیفهٔ راشد حضرت عثمان رضی اللہ عنہ خلقو ته د اَودس طریقه ښودلو دپاره) د اَودس اُوبه راوُغوښتے او اَودس ئے

وَاسْتَنْشَرَ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهٗ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنٰى اِلَى الْمِرْفَقِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُسْرٰى مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ مَسَحَ بِرَاْسِهٖ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى اِلَى الْكَعْبَيْنِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ غَسَلَ الْيُسْرٰى مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّاَ نَحْوَ وُضُوْئِىْ هٰذَا۔ (مسلم ج۱ ص۱۲۰ باب صفة الوضوء)

اُوکړو نو درے ځله ئے خپل لاسونه اُووینځل بیا ئے ځلۀ اُووینځله بیا ئے پوزه کښې اُوبۀ واچولے او صفا ئے کړه اوبیا ئے درے ځله خپل مخ اُووینځلو بیا ئے درے ځله تر څنګلو پورے ښے لاس اُووینځلو بیا ئے همدارنګ درے ځله تر څنګلو پورے کس لاس اُووینځلو بیا ئے د سر مسح اُوکړه۔ بیا ئے درے ځله ښئ خپه تر ګیټو پورے اُووینځله اوبیا ئے همدارنګه کسه خپه تر ګیټو پورے اُووینځله بیا حضرت عثمان رضی اللہ عنہ اُوفرمائیل ما رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم داسے اُودس کولو باندِ لیدلے وو۔"

فائده :- دا مضمون مرفوع حدیث په صحیح بخاری، ابوداؤد، نسائی، مسند احمد، دارقطنی، صحیح ابن حبان او صحیح ابن خزیمۃ کښې هم موجود دے۔ (زجاجة المصابیح ص۱۷۷ ج۱)

(۵۷) عَنْ اَبِیْ حَیَّةَ قَالَ رَاَیْتُ عَلِیًّا رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ تَوَضَّاَ فَغَسَلَ کَفَّیْهِ حَتّٰی اَنْقَاهُمَا ثُمَّ مَضْمَضَ ثَلٰثًا وَاسْتَنْشَقَ ثَلٰثًا وَغَسَلَ وَجْهَهٗ ثَلٰثًا وَذِرَاعَیْهِ ثَلٰثًا وَمَسَحَ بِرَاْسِهٖ مَرَّةً

حضرت ابُوحیۃ فرمائی چه ما خلیفۀ راشد حضرت علی کرم اللہ وجہہ لیدلے وو چه هغهٔ (خلقو ته عملی ښودلو دپاره) اُودس اُوکړو۔ خپل دواړه لاسونه ئے اُووینځل تر دے چه ښۀ پاک شول۔ بیا ئے درے ځله ځلۀ اُووینځله۔ بیا ئے درے ځله

ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ...... ثُمَّ قَالَ أَحْبَبْتُ أَنْ أُرِيَكُمْ كَيْفَ كَانَ طُهُورُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۔

(جامع ترمذی ج۱ ص۸، نسائی)

پوزه کښ اُوبۀ واچولے اوبنۀ ئے صفا کړه او درے ځله ئے خپل مخ اُووینځلو او درے ځله ئے دواړه لاسونه اُووینځل او یو ځل ئے خپل سر مسح اُوکړه۔ بیائے دواړه خپے تر ګیټو پورے اُووینځلے۔ بیائے اُووئیل چه ما داغوښتل چه تاسو ته اُوښایم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم څنګه اُودس کړیدے۔

(۵۸) د حضرت ابن عباس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ بِرَأْسِهٖ وَ اُذُنَيْهِ بَاطِنَهُمَا بِالسَّبَّاحَتَيْنِ وَظَاهِرَهُمَا بِإِبْهَامَيْهِ۔

(نسائی ج۱ ص۲۹ باب مسح الاذنین)

بیشکه رسولِ اکرم صلی الله علیه وسلم د خپل سر او غوږونو مسح اُوکړه۔ د غوږونو د ننه طرف مسح ئے مسواکو ګوتو سره اُوکړه او د غوږونو بهر حصے ئے ګټو ګوتو سره اُوکړه

(۵۹) د حضرت ابن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسْحُ الرَّقَبَةِ اَمَانٌ مِّنَ الْغُلِّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د څټ مسح کول د قیامت په ورځ (د جهنم) د طوق نه حفاظت دے۔

(مسند الفردوس للدیلمی، زجاجة المصابیح ص۱۰۳ ج۱)

(۶۰) د حضرت ابن عمر رضی الله عنه دویم مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّاَ وَمَسَحَ يَدَيْهِ عَلٰى عُنُقِهٖ اُمِنَ مِنَ الْغُلِّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ۔

(رواه ابو نعیم فی الحلیة، زجاجة المصابیح ص۱۰۳ ج۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی چه چا اُودس اُوکړو او خپلو دواړو لاسونو سره ئے د څټ مسح اُوکړه نو د قیامت په ورځ به د طوق نه محفوظ وی۔

**فائدہ:۔** د غٹ د مسحے بارہ کښې یو مرفوع حدیث "صحیح ابن السکن" کښې هم شته۔ (زجاجه ص۱۰۱ ج۱) د غټ مسح کول مستحب دہ۔ د غټ د مسح بارہ کښې د دے احادیثو نه علاوہ نور احادیث هم شته دے چه د هغے تفصیل د حضرت عبد الحیّ لکهنوی رحمة الله علیه په بیمثال کتاب "اَلسِّعَایَة" جلد اول ص۱۷۷ نه تر ص۱۷۹ پورے موجود دی۔

مرحوم مولانا صاحب فرمائیلی دی: (ترجمه)

"اګرچه د دے مسئلے د احادیثو په سند کښې لږ ضُعف شته لیکن فضائلو او مستحباتو کښې ضعیف حدیث هم قابل د عَمل وی۔" (السعایه ص۱۷۹ ج۱)

علامه موصوف په دے مسئله باندے یو مستقل رساله هم لیکلے ده چه نوم ئے "تُحفَةُ الطلبة فی تحقیق مَسح الرَّقبة" دے۔

(۶۱) د حضرت رُبیّع بنت معوّذ رضی الله عنها مرفوع حدیث دے:

| | |
|---|---|
| اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَاَدخَلَ اِصبَعَیهِ فِی جُحرَی اُذُنَیهِ۔ | رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس اوکړو (د غوږونو د مسح په وخت کښې) د غوږونو په سورو کښې ئے دوارہ ګوتے ننه کړے۔ |

(ابوداؤد ص۱۹ ج۱، ابن ماجه، مسند احمد، مشکوٰة ص۴۶)

(۶۲) د حضرت ابنِ عَبّاس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

| | |
|---|---|
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ اِذَا تَوَضَّأتَ فَخَلِّل اَصَابِعَ یَدَیکَ وَرِجلَیکَ۔ (ترمذی ص۶ ج۱ باب تخلیل اللحیة، مشکوٰة ص۴۶) | رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله تۀ اودس کوے نو د خپلو دواړو لاسونو او دواړو خپو د ګوتو خلال کوه۔ |

## څلورمه حصه د سر مَسح فرض دہ

د حضرت مغیرہ بن شُعبه رضی الله عنه مرفوع حدیث دے۔

(۶۳) اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَمَسَحَ عَلٰی نَاصِیَتِہٖ۔

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم اودس اوکړه او پخپل وتندی په وېښتو باندې مسح اوکړه۔

(مسلم ج۱ ص۱۳۴ باب المسح علی الخفین، مشکوٰۃ ص۴۶، ابوداؤد ج۱ ص۲۲)

(۶۴) د حضرت انس رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَأَیْتُ رَسُوْلَ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ یَتَوَضَّأُ وَعَلَیْہِ عِمَامَۃٌ قِطْرِیَّۃٌ فَاَدْخَلَ یَدَہٗ مِنْ تَحْتِ الْعِمَامَۃِ فَمَسَحَ مُقَدَّمَ رَأْسِہٖ فَلَمْ یَنْقُضِ الْعِمَامَۃَ۔ (ابوداؤد ج۱ ص۲۱ باب المسح علی العمامۃ، مستدرک حاکم)

حضرت انس رضی اللہ عنہ فرمائی چه ما رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم په اودس کولو اولیدلو او ر په سر مبارک لئے) د قطری کپړے پټکے وُو۔ نبی علیہ السلام خپل لاس دپټکی د لاندے ننه کړو او د سر مبارک د مخے حصه باندې ئے مسح اوکړله او پټکے ئے کهلاؤ نکړو۔

فائده:- د ټول سر د مسح حدیثونه " د اودس طریقه" د عنوان لاندے ذکر شوی دی۔ که چرے د ټول سر مسح فرض وے نو نبی علیہ السلام به صرف په څلورمه حصه د سر مسح باندې اِکتفا نۀ کوله۔ او که د سر څلورمے حصے نه کم باندې مسح کول کافی وے نو د جائز کېدلو د پاره کم نه کم یو ځل به نبی علیہ السلام کړے وے لیکن پوره ذخیره احادیثو کښ هم یو ځل خو به رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم نه ثابته وه۔ دوے تفصیل نه واضحه شوه چه د سر څلورمه حصه مسح کول فرض ده او د ټول سر مسح کول سنت ده۔ (فتح القدیر ج۱ ص۱۵ ابن الہمام)

## د کامل اودس برکتونه

د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے۔

(۶۵) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه څوک

مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهٖ۔ (مسلم ص۱۲۵ ج ۱، مشکوٰۃ ص۳۸)

ښهٔ طریقے سره اَودس اُوکړی دهغهٔ د بدن نه ټول ګناهونه ختم شی۔

(۶۶) د حضرت عُمر بن خطّاب رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُبْلِغُ اَوْ فَيُسْبِغُ الْوُضُوْءَ ثُمَّ يَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ وَفِيْ رِوَايَةٍ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ اِلَّا فُتِحَتْ لَهٗ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُهَا مِنْ اَيِّهَا شَاءَ۔ (مسلم ج۱ ص۱۲۲، مشکوٰۃ ص۳۹)

رَسُول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه په تاسو کښی څوك مکمل اَودس اُوکړی او بیا دا دُعا اُووائی: اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ۔ او بل روایت کښی دا دُعا ده: اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ نو خامخا به دهٔ دپاره د جنت اَتهٔ واړه دروازے کهلاؤ شی۔ دغه سړے چه په کومه دروازه غواړی جنت ته به داخل شی۔

٭ ٭ ٭

**فائده:** د جنت داخلیدو دپاره یوه دروازه کهلاویدل هم کافی ده اَتهٔ دروازے صرف دعزت او اکرام دپاره دی۔

(۶۷) د حضرت اَبُو هریره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اُمَّتِيْ يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ غُرًّا مُحَجَّلِيْنَ مِنْ اٰثَارِ الْوُضُوْءِ۔

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه زما اُمّتی به د قیامت په ورځ را اُوغوښتی شی نو د اَودس ګولو په وجه به د دهٔ مخ او

(بخاری ص۲۵ ج۱، مسلم ص۱۲۶ ج۱، مشکوٰۃ ص۳۹) لاسو نه اوښپے رنړا کوی.

## اودس کولو باندې وخت اوبه کم لګول:

(۶۸) د حضرت عبد الله بن عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رضی الله عنهما مرفوع حدیث دے:

اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِسَعْدٍ وَهُوَ یَتَوَضَّأُ فَقَالَ هٰذَا السَّرَفُ یَا سَعْدُ! قَالَ اَفِی الْوُضُوْءِ سَرَفٌ قَالَ وَاِنْ کُنْتَ عَلٰی نَهْرٍ جَارٍ۔

(مسند امام احمد، ابن ماجه ص۳۴، مشکوٰۃ ص۴۷)

حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه اودس کولو چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ورسره تیر شو او وے فرمائیل چه اے سعده! داخه اسراف دے. هغه اووئیل، آیا په اودس کښې هم اسراف شته؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل چه (او) اګرکه ته د روان نهر په غاړه ناست یے.

* * *

(۶۹) د حضرت عمرو بن شعیب عَنْ اَبِیْهِ عَنْ جَدِّهٖ په سند سره مرفوع حدیث دے:

قَالَ جَآءَ اَعْرَابِیٌّ اِلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَسْئَلُ عَنِ الْوُضُوْءِ فَاَرَاهُ ثَلٰثًا ثَلٰثًا ثُمَّ قَالَ هٰکَذَا الْوُضُوْءُ فَمَنْ زَادَ عَلٰی هٰذَا فَقَدْ اَسَآءَ وَتَعَدّٰی وَظَلَمَ۔

(نسائی ص۳۳ ج۱، ابن ماجه ص۳۴، مشکوٰۃ ص۴۷)

یو اعرابی دا اودس متعلق تپوس د پاره د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو نو نبی علیه السلام ورته د هر اندام درے درے ځله د وینځلو طریقه اوښودله. بیائے اوفرمائیل چه اودس دے ته وائی، چا چه په دے زیاتوالے اوکړو نو هغه بد اوکړه، ظلم او زیاتے ئے اوکړو.

## د اودس نه پس دُعا

د حضرت عُمر بن خطاب رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۷۰) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

رسولِ اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه

مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ قَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ - اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ۔ فُتِحَتْ لَهٗ ثَمَانِيَةُ اَبْوَابٍ مِّنَ الْجَنَّةِ يَدْخُلُ مِنْ اَيِّهَا شَاءَ - (ترمذی ج۱ ص۱۸ باب ما یقال بعد الوضوء، مشکوٰة ص۳۹)

چا چې ښهٔ طریقے سره اودس اُو کړو او بیا ئے دا دُعا اُووئیله: اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ نو هغهٔ د پاره به د جنت اتهٔ واړه دروازے کهلاؤ شي. هغه چه د جنت په کومه دروازه غواړی داخل به شي.

## د جنابت د غسل فرضیّت

الله تبارک وتعالیٰ فرمائیلی دی:

(۷۱) وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا - (مائده: ۵/۶)

که چرے تاسو په جنابت کښ یئ نو ځان ښهٔ پاک کړئ.

## د غسل طریقه او د هغې آداب

د حضرت میمونه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے

(۷۲) قَالَتْ اَدْنَيْتُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْجَنَابَةِ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهٗ فِي الْاِنَاءِ ثُمَّ اَفْرَغَ بِهٖ عَلٰى فَرْجِهٖ وَغَسَلَهٗ بِشِمَالِهٖ ثُمَّ ضَرَبَ بِشِمَالِهِ الْاَرْضَ فَدَلَكَهَا دَلْكًا

حضرت میمونه رضی الله عنها فرمائی چه ما د جنابت د غسل د پاره نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره اُوبهٔ کیخودے۔ نبی علیه السلام دوه[۲] یا درے[۳] حُله خپل دواړه لاسونه اُووینځل بیا ئے لاس په لوښی کښ د ننه کړو. او استنجاء ئے اُوکړه په کس لاس سره بیا ئے خپل لاس په زمکه ښهٔ اُومږلو.

شَدِيْدًا ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوْءَهٗ لِلصَّلٰوةِ ثُمَّ اَفْرَغَ عَلٰى رَاْسِهٖ ثَلٰثَ حَفَنَاتٍ مِلْأَ كَفَّيْهِ ثُمَّ غَسَلَ سَائِرَ جَسَدِهٖ ثُمَّ تَنَحّٰى عَنْ مَقَامِهٖ ذٰلِكَ فَغَسَلَ رِجْلَيْهِ۔

بیائے دما نحه د اودس پشان اودس اوکړلو۔ د دینه پس لاس په خپل سر باندې درې لپې اوبه واچولې۔ بیا ئے خپل ټول بدن اووینځلو۔ بیا د هغه ځائے نه لرې شوا و دواړه خپې ئے اووینځلې۔

(بخاری ص۴۰ جلد۱، مسلم ص۱۴۷ جلد۱ واللفظ لمسلم)

(۷۳) د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ وَاَنْقُوا الْبَشَرَةَ۔

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی۔ د هر ویښته د لاندې جنابت دے نو ویښته وینځئ او پوستکے (څرمن) پاکوئ۔

(ابو داؤد ج۱ ص۳۳، ترمذی ج۱ ص۱۶، ابن ماجه، مشکوٰة ص۴۸)

(۷۴) د حضرت ابویعلیٰ رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ حَيِيٌّ سِتِّيْرٌ يُحِبُّ الْحَيَاءَ وَالتَّسَتُّرَ فَاِذَا اغْتَسَلَ اَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَتِرْ۔ (ابو داؤد ج۲ ص۲۰۱، نسائی ج۱ ص۶۷، مشکوٰة ص۴۹)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه الله تعالیٰ حیا ناك او پرده پوش دے او حیاء او پرده پوشي خوښوی چه کله ستا سو نه څوك غسل کوی نو پرده د کوی۔

## د جمعې په ورځ غسل سنت دے

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے

(۷۵) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا جَاءَ اَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه ستاسو نه څوك د جمعې مانځه له راځي نو پکار دی

فَلْيَغْتَسِلْ۔ چه غُسل اُوکړی۔

(بخاری ص۱۲۰ ج۱، مسلم ص۲۷۹ ج۱، مشکوٰة ص۵۵)

(۷۶) د حضرت سَمُره بن جُندب رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَ نِعْمَتْ وَمَنْ اِغْتَسَلَ فَالْغُسْلُ اَفْضَلُ۔

رَسُوْلُ الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرما ئیلی دی چه څوک د جُمعے په ورځ اَودس اُوکړی نو ډیره ښهٔ ده او چه څوک غُسل اُوکړی نو غُسل بهتر دے۔

(ابو داؤد ص۵۷ ج۱، ترمذی، نسائی، مسند احمد، مشکوٰة ص۵۵)

## دَ اَختر په ورځ غُسل سُنت دے

د حضرت عبد الله بن عبّاس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۷۷) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ الْاَضْحٰی۔ (ابن ماجة ص۹۴)

رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د وړوکی اَختر او د لوئے اَختر په ورځ غُسل کؤلو۔

## دَ مونځ عظمت او اَهمیّت

د الله تعالیٰ په پاک ذات او صفاتُ د هغهٔ په بے شماره احسانات او کمالاتُ، د هغهٔ په یَو والی او پاکوالی باندِ ایمان راوړل او د الله منلو فطری او قدرتی دا تقاضا ده چه بنده د هغهٔ په دربار کښ د خپلے عاجزئ او محتاجئ او د هغهٔ د لوئے والی اقرار او اِظهار اُوکړی او د هغهٔ په یادَوَلو باندِ خپل زړهٔ او رُوح خوشحاله کړی۔

په دیکښ هیڅ شک نشته چه مونځ د دغے خبرے پوره کؤلو او د دے مقصد حاصلؤلو دپاره یَوه لویه ذریعه ده۔ د ټولو پیغمبرانو په تعلیم کښ او په اسمانی شریعت کښ د ایمان نه پس ړومبے حکم دَ

مونځ راغلی دے۔ د اسلام د حکیمانو د سر تاج حضرت شاه ولی الله رحمة الله علیه د مونځ د حکمت او حقیقت باره کښ فرمائیلی دی:

وَاَصْلُ الصَّلٰوةِ ثَلٰثَةُ اَشْيَاءَ اَنْ يَّخْضَعَ الْقَلْبُ عِنْدَ مُلَاحَظَةِ جَلَالِ اللّٰهِ وَعَظَمَتِهٖ وَيُعَبِّرَ اللِّسَانُ عَنْ تِلْكَ الْعَظَمَةِ وَ ذٰلِكَ الْخُضُوْعُ بِاَفْصَحِ عِبَارَةٍ وَّاَنْ يُّؤَدَّبَ الْجَوَارِحُ حَسْبَ ذٰلِكَ الْخُضُوْعِ۔

د دے عبارت حاصل دا دے چه د مونځ بنیاد دا دے چه بنده په یو وخت کښ د خپل زړهٔ، ژبے او ټولو اندامونو نه د الله تعالیٰ د لوئی والی او د جلال اظهار او اعلان کوی او د خپلے عاجزئ او بندګئ اعتراف او اقرار اُوکړی۔

(حجة الله البالغة صـ۷۲ جلد اوّل باب اسرار الصّلوٰة)

په دے موضوع بانڈ علامه سیّد سلیمان ندوی رح لیکلی دی:

"مونځ څۀ څیز دے؟ د مخلوق د خپل زړهٔ، ژبے او لاسونو ښپونه د خپل خالق د بندګئ اظهار کول دی او د دے رحمٰن او رحیم یادول او د هغهٔ د بے حده احساناتو شکریه اداکول او د ازل نه د ثناء او تعریف او د هغهٔ د یو والی او لوئی اقرار کول۔ دا خپل محبوب رُوح ته خطاب دے۔ دا د خپل آقا په حضور کښ د بدن بندګی ده۔ دا څمونږ د پټو احساساتو پیش کول دی۔ دا څمونږه د زړهٔ د فطرت ترانه ده۔ دا د خالق او مخلوق په مینځ کښ د تعلق او د نزدیکت ذریعه ده۔ دا د بے قراره رُوح سکون او آرام دے او د غمژن زړهٔ شفا ده۔ او د ناامیده زړهٔ اُمید دے۔ دا د فطرت آواز دے۔

دا دَحساس او اثر اخستونکی طبیعت د دنه اوازد ے۔ دا دَ زندګئ خلاصه ده۔" (سیرة النبیؐ صـ ۵۹، ۶۰ ج ۵)

## دمونځ فرضیت

دالله تعالیٰ ارشاد دے:

(۷۸) وَاَقِیۡمُوا الصَّلٰوةَ (بقره ۲) "او مونځ قائم کړئ۔"

د اِقَامَتِ الصَّلٰوة مطلب دا دے چه مونځ همیشه په پابندئ سره دهغې د ارکانو، شرائطو او سنتو او مستحبو خیال ساتلو سره اداکړی۔

## مونځ دَ ټولو پیغمبرانو علیهم السلام د شریعتونو بنیادی رُکن دے

د قرآنِ پاک د تعلیم مطابق پیغمبرانو علیهم السلام همیشه پخپله دمونځ اهتمام کړلو او خپل اُمت ته به ئے دمونځ تاکید کولو۔ حضرت ابراهیم علیه السلام خپل خوږ ځوئے اسماعیل علیه السلام دمکے مکرمے په وړانه او شاړه زمکه کښې اباد کړهٔ او دهغې مطلب ورته بنائی:

(۷۹) رَبَّنَا لِیُقِیۡمُوا الصَّلٰوةَ۔ (ابراهیم ۱۴) اے زمونږ پروردګاره ! دے دپاره چه دوی مونځ قائم کړی۔

حضرت ابراهیم علیه السلام خپل ځان دپاره او خپل نسل (اولاد) دپاره دُعا کوی:

(۸۰) رَبِّ اجۡعَلۡنِیۡ مُقِیۡمَ الصَّلٰوةِ وَمِنۡ ذُرِّیَّتِیۡ۔ (ابراهیم ۱۴) اے زمونږ پروردګاره! ما او زما اولاد مونځګذاره جوړ کړے۔

دحضرت اسماعیل علیه السلام باره کښې دقرآن مجید ګواهی ده:

(۸۱) وَکَانَ یَاۡمُرُ اَهۡلَهٗ بِالصَّلٰوةِ ط (مریم ۱۹) او هغهٔ (اسماعیل علیه السلام) خپل اهل و عیال ته دمونځ حکم کولو۔

دحضرت شعیب علیه السلام دمونځ ذکر په سورة هود کښې دے:

(۸۲) اَصَلٰوتُكَ تَاۡمُرُكَ — آیا ستا مونځ تا ته دا حکم درکوی۔ (هود ۱۱/۸۷)

د حضرت لوط، حضرت اسحاق او حضرت یعقوب علیهم السلام باره کښې د قرآن مجید بیان دے:

(۸۳) وَاَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡهِمۡ فِعۡلَ الۡخَیۡرٰتِ وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ۔ — او مونږ دوی ته د نیک کار کولو او د مونځ قائمولو د پاره وحی اُوکړه۔ (انبیاء ۲۱/۷۳)

حضرت لقمان علیه السلام خپل ځوی ته نصیحت کوی:

(۸۴) یٰبُنَیَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ۔ — اے ځما ځویه! مونځ کوه۔ (لقمان ۳۱/۱۷)

حضرت موسیٰ علیه السلام ته د الله حکم کیږی:

(۸۵) وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكۡرِیۡ۔ (طٰهٰ ۲۰/۱۴) — او ځما یادولو د پاره مونځ قائم کړه۔

حضرت موسیٰ او حضرت هارون علیهما السلام ته الله تعالیٰ فرمائی:

(۸۶) وَاَقِیۡمُوا الصَّلٰوةَ (یونس ۸۷) — او مونځ قائم کړئ۔

بنی اسرائیلو سره د الله تبارك وتعالیٰ وعده وه:

(۸۷) اِنِّیۡ مَعَكُمۡ لَئِنۡ اَقَمۡتُمُ الصَّلٰوةَ۔ (مائده ۵/۱۲) — که چرے تاسو مونځ قائم کړو نو زه تاسو سره یم۔

د حضرت زکریا علیه السلام باره کښې د قرآن حکیم ارشاد دے:

(۸۸) وَهُوَ قَآئِمٌ یُّصَلِّیۡ فِی الۡمِحۡرَابِ (آل عمران ۳/۳۹) — هغه په محراب کښې ولاړ وو مونځ ئې کولو۔

حضرت عیسیٰ علیه السلام فرمائی:

(۸۹) وَ اَوْصَانِیْ بِالصَّلٰوۃِ۔ (مریم ۱۹/۳۱) — او اللہ تعالیٰ ماته دمانځه تاکید سره حکم فرمائیلے دے ؛

د انبیاء علیهم السلام د جانشینو او تابعدارو خلقو چه مونځونه نهٔ کول نو په قرآن شریف کښ د هغې سخته سزا بیان شویده او هغوی ته د آخرت د عذاب سخته دهمکی ورکړے شویده۔

(۹۰) فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوۃَ وَ اتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ فَسَوْفَ یَلْقَوْنَ غَیًّا ۝ (مریم ۱۹/۵۹) — بیا د دوی نه پس بیکاره جانشین پیدا شول چه هغوی مونځ ضائع کړلو او دخواهشاتو تابعداری ئے کوله۔ پس زر دے چه خرابی اُووینی۔

د قیامت په ورځ دوزخیانو نه چه دوزخ ته د تلو نیوس اُوشی نو هغوی به یوه وجه دابیان کړی چه

(۹۱) لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّیْنَ ۝ (مدثر ۲۹/۴۳) — مونږ به مونځ نهٔ کولو۔

یو بل ځائی کښ مونځ کښ سستی کول ئے د منافقت یوه علامه ښودلے ده :

(۹۲) اِنَّ الْمُنٰفِقِیْنَ یُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ وَ اِذَا قَامُوْٓا اِلَى الصَّلٰوۃِ قَامُوْا كُسَالٰى ۝ (النساء ۴/۱۴۲) — بیشکه منافقان خلق د اللہ تعالیٰ سره دهوکه کوی حالانکه اللہ تعالیٰ به دوی ته د دهوکے بدله ورکړی او چه مونځ کوی نو سستی پکښ کوی۔

مونځ د بدئ او بے حیائیځ نه خلق منع کوی :

(۹۳) اِنَّ الصَّلٰوۃَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَ الْمُنْكَرِ (العنکبوت ۲۹/۴۵) — بیشکه [illegible] ځ د بے حیائیځ او بدکارئ نه منع کول کوی۔

یوځائ کښې ارشاد دے:

(۹۴) وَ اَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ○ (الروم ۳۱)

او مونځ کوئ او د مشرکانو نه مه جوړیږی۔

ددے نه معلومه شوه چه مونځ پریخودو سره په کفر او شرک کښې اَخته کیدل لوخطره ده۔ د قران شریف هم دا مضامین او هدایاتو لره په حکمتِ نبوی او سُنّتِ نبوی علیٰ صاحبها الصَّلٰوة وَالسَّلام په مختلفو عنوانونو سره ذکر کړیدی۔

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

(۹۵) قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلٰوةِ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د بنده او کُفر یو ځائ کولو څیز مونځ پریښودل دی۔

(مسلم ج۱ ص۶۱، ابو داؤد، مشکوٰة ص۵۸، ترمذی، نسائی، ابن ماجه، مسند احمد)

یعنی مونځ د اسلام یوه اهمه نښه ده چه ددے په پریښودو سره سړے کُفر ته ورسی۔

(۹۶) د حضرت عبد الله بن عُمر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم بُنِيَ الْاِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ شَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُولُهٗ وَ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د اسلام بنیاد پینځه څیزونه دی۔ ددے خبرے ګواهی ورکول چه د الله تعالیٰ نه بغیر بل څوک د عبادت لائق نشته او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د هغه بنده او رسول دے او مونځ قائمول او زکوٰة ورکول او حج کول او د رمضان د میاشتے روژ

(بخاری ج۱ ص۶، مسلم ج۱ ص۳۲، مشکوٰة ص۱۲)

(۹۷) د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ ذَكَرَ اَمْرَ الصَّلٰوةِ يَوْمًا فَقَالَ مَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَتْ لَهُ نُوْرًا وَّ بُرْهَانًا وَّ نَجَاةً اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَمَنْ لَّمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نُوْرًا وَّلَا بُرْهَانًا وَّلَا نَجَاةً وَكَانَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَعَ قَارُوْنَ وَفِرْعَوْنَ وَ هَامَانَ وَ اُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ۔

(مسند دارمی، مسند احمد، مشکوٰۃ ۵۸)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم یو ځل د مونځ خبرې کولے او وے فرمائیل چه څوک د مونځ اهتمام کوی نو دغه مونځ به د قیامت په ورځ (په تیاره کښ) د ده د پاره رڼرا او د ده د ایمان دلیل او د خلاصی ذریعه به وی۔ او چا چه د مونځ حفاظت او اهتمام اونکړو نو دا مونځ به د ده د پاره نه رڼرا وی او نه دلیل او نه به د خلاصی ذریعه وی او دغه سړے به د قیامت په ورځ (غټو کافرانو) قارون فرعون، هامان او اُبَیّ بن خلف سره وی۔"

## په مونځ باندې د ګناهونو معافی

د حضرت عُبادہ بن صامت رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

(۹۸) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسُ صَلَوَاتٍ اِفْتَرَضَهُنَّ اللهُ تَعَالٰى مَنْ اَحْسَنَ وُضُوْءَهُنَّ وَصَلَّاهُنَّ لِوَقْتِهِنَّ وَ اَتَمَّ رُكُوْعَهُنَّ وَخُشُوْعَهُنَّ كَانَ لَهُ عَلَى اللهِ عَهْدٌ اَنْ يَّغْفِرَلَهُ وَمَنْ لَّمْ يَفْعَلْ فَلَيْسَ لَهُ عَلَى اللهِ عَهْدٌ اِنْ

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه پنځه مونځونه الله تعالیٰ فرض کړیدی چا چه هغې د پاره ښه طریقے سره اودس اُوکړو او په خپل وخت سره ئے اُوکړو او د دے رکوع او خشوع ئے پوره اُوکړه دا سے سړی د پاره د الله تعالیٰ وعده ده چه هغه به بخښم او چا چه د دے طریقے سره مونځ اُونکړو، هغه سره د الله

شَآءَ غَفَرَ لَهٗ وَاِنْ شَآءَ عَذَّبَهٗ۔ (ابوداؤد صـ ۶۱/۱ ، مسند امام احمد، مشکوٰۃ صـ ۵۸)

تعالیٰ هیڅ وعده نشته۔ که خوښه ئے شی اُوبه ئے بخښی او که خوښه ئے شی عذاب به ورکوی۔

**فائده:**۔ څوک چه ښه اهتمام سره، خشوع او خضوع سره، او د سنتو او مستحبو خیال ساتلو او پابندئ سره همیشه مونځ کوی نو دا تجربه او مشاهده ده چه دا سړے پخپله هم د ګناهونو نه بچ کیږی او که چرے ګناه ترینه اُوشی نو د توبے او استغفار توفیق ورته الله تعالیٰ ورکوی۔ داسے مونځ په هر حالت کښې بالواسطه یا بلا واسطه د ده د بخښنے ذریعه جوړیږی۔

(۹۹) د حضرت ابو هریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اَرَاَیْتُمْ لَوْ اَنَّ نَهْرًا بِبَابِ اَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ فِيْهِ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسًا هَلْ يَبْقٰى مِنْ دَرَنِهٖ شَىْءٌ قَالُوْا لَا يَبْقٰى مِنْ دَرَنِهٖ شَىْءٌ قَالَ فَذٰلِكَ مَثَلُ صَلَوَاتِ الْخَمْسِ يَمْحُو اللّٰهُ بِهِنَّ الْخَطَايَا۔ (بخاری صـ ۷۶/۱ باب صلوات الخمس کفارة، مسلم، مشکوٰۃ صـ ۵۷)

رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل چه تاسو اُووایئ چه د چا د کور مخے ته نهر تیر شوے وی او هغه هره ورځ په دغه نهر کښې پنځه ځله لامبی نو آیا د ده په بدن به څه خیرے پاتے شی۔ نو صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اُوکړو چه لږ خیرے به هم پاتے نشی۔ نو نبی علیه السلام اُوفرمائیل چه هم دا رنګ مثال د پنځو مونځونو دے چه الله تعالیٰ په دے مونځونو کولو سره ګناهونه معاف کوی۔"

| پنځه وخته مونځ | کلمه طیبه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ د بنده او د الله تعالیٰ ترمینځه لوړه و... |
|---|---|

دہ چہ دژوند مقصد د اللہ پاک عبادت کول دی او د عبادت طریقہ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم د سُنتو تابعداری دہ۔ د کلمے اول جزء: "لَآ اِلٰہَ اِلَّا اللّٰہُ" کښې دژوند دَمقصد بیان دے۔ او دویم جزء: "مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰہِ" کښې ددے لوئے مقصد دحاصلولو دطریقے ذکر دے۔

روزانہ پنځۀ وخته مونځ یو اَهم مقصد دَدے وعدے تازہ کول دی۔ سَحر دَخوب نہ پاځیدل دمؤذن آواز: "اَللّٰہُ اَکْبَرُ اَللّٰہُ اَکْبَرُ" سرہ بندہ د اللہ پاک په دربار کښې حاضری ورکوی۔ په زړۀ او ژبے او نورو آندامونو سرہ د اللہ تعالیٰ دَ لوئے والی او د بندگئ باربار اظهار کوی۔ د ژبے نہ دا اقرار کوی چہ یا اللہ! زۀ بے مُهارہ اُوښ نۀ یم بلکه ستا عاجز بندہ یم او ستا د پیغمبر صلی اللہ علیہ وسلم تابعدار یم ځۀ به ټول ژوند ستا دحُکمونو او دَ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم د حکمونو مطابق تیرَوم۔

د نمر ختلو نه ترنَ والہ پورے تقریبًا اُوۀ اَتۀ گهنټے اُوږدہ وقفه د نورو کارونو پورہ کولو د پارہ دہ۔ د زوال نه پس بیا اللہ پاک طرفته رابلونکے (مؤذّن) دوبارہ د اللہ په دربار کښې حاضری ورکوی۔ د خپلے عاجزئ او کمزورئ اظهار کوی۔ د اللہ تعالیٰ دلوئ والی اقرار او اعلان کوی۔ بیا دلږے لږے وقفے نه پس د مازیگر او ماښام او ماسخوتن په مونځونو کښې د هغه وعدے تازہ والے او یاددهانی کیږی۔ چه کله بندہ د عقل او شعور سرہ پنځه وخته مونځ پابندئ سرہ اَداکوی نو دا مونځ انسان ته باربار دا خبرہ تازہ کوی چه اے انسانه! تۀ بے مهارہ اُوښ نۀ یے بلکه د ټولو نه لوئے طاقت او قدرت والا ذات بندہ او غلام یے څنگه چه تۀ په مانځه

کېنې دننه د احکامو پابندي کوے نو د ما نخۀ نه بهرهم د احکامو مطابق ژوند تېروه چه که دفتر کښې يې او که کارخانه کښې يې يا پټي او دُوکان کښې يې يا هر ځائے کښې چه يې هر وخت کښې د الله تعالیٰ احکام او د هغۀ د رسول صلی الله علیه وسلم هدايات تو بانډِ نظر ساته او خپله ذِمه داري پوره کوه۔

د الله تبارك وتعالیٰ ارشاد دے:

(۱۰۰) اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ ؕ (العنکبوت ۲۹/۴۵)

بيشکه مونځ د بے حيايئ او غلط کارونو نه منع کوي او د الله پاك ذکر د ټولو څيزونو نه لوئے دے۔

څنګه چه د بدن د صحت باقي پاتے کيدو د پاره روزانه څو څو ځل خوراك ضروري دے دغه شان د روحاني ژوند چه ډير اُوږد ژوند دے، چه د قبر، حشر او آخرت په کروړونو کلونه دے۔ لامحدوده او نۀ ختميدونکے ژوند دے، د هغے روح ايمان دے او د هغے غِذا مونځ او نور عبادات دي۔ روحاني او د آخرت ژوند ته تازه وينه ورکول او د هغے صحت باقي پاتے کيدو او تروتازه کيدو د پاره روزانه پنځه وخته مونځونو سره روحاني غِذا ملاويږي۔

اصلي ژوند د آخرت ژوند دے۔ د الله تعالیٰ ارشاد دے:

(۱۰۱) وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ؕ وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِىَ الْحَيَوَانُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝ (العنکبوت ۲۹/۶۴)

او دَ دُنيا ژوند لوبے او تماشے دي او د آخرت کور د ژوند ځائے دے کاش! چه دا خلق پوهيدے

که چېرے د دُنيا ژوند لے د الله تعالیٰ د حکمونو او د نبي علیه الصلوٰة والسلام

دسیرت مطابق پابند کړو نو بیا به داڅرونډ داخرت ژوند کامیابیږي دپاره مقدمه او بنیاد جوړشي او قیمتي به جوړشي او ددنیا کاروبه به هم دین او عبادت ګرځي۔

## پنځه وخته فرض مونځ او دهغې وختونه

دالله تعالی ارشاد دے۔

(۱۰۱) اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا۔ (النساء ۱۰۳) بیشکه مونځ په مؤمنانو فرض دے په خپل وخت سره۔

(۱۰۲) حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى (بقره ۲۳۸) دمونځونو حفاظت کوئ خاصکر د مینځنی مونځ (دمازیګر مونځ)

په دے ایت کښ دجمع صیغه په ډیرو مونځونو دلالت کوي۔

(۱۰۳) مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَمِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ۔ دسحر مانځه نه مخکښ او دماسخوتن مانځه نه پس۔

په دے ایت کښ دسحر او دماسخوتن دمانځه ذکر شوید ے۔

(۱۰۴) اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ (هود: ۱۱۴) او د ورځے په دواړو طرفونو او د شپے په څه حصوکښ مونځ قائم کړئ۔

(۱۰۵) اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوْكِ الشَّمْسِ اِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ۔ (الاسراء ۷۸) چه کله نمر زوال ته اورسیږی یعنی د زوال نه تر شپے پورے مونځ قائم کړئ او دسحر مونځ هم۔

په دے ایت مبارکه کښ دپنځو مونځونو ذکر دے۔ (تفسیر معالم التنزیل) پنځو مونځونو فرض کیدل د ډیرو متواترو احادیثو نه هم ثابت دی۔

نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم او صحابه کرامو رض به همیشه د پاره په پابندئ سره ادا کول - متواتر احادیث د قطعي دلائلو نه دی - د څوارلس سوو کالو نه پس په لکھونو او کروړونو مسلمانانو د مونځونو ادا کولو سلسله راروانه ده - په ټول اسلامي تاریخ کښ یوه ورځ یا یو وخت هم په دے عمل بندیز نهٔ دے راغلے - (سیرة النبی ص۱۱۹ ج۵، التعلیق الصبیح ص۲۰۷ ج۱)

د خلقو د آسانتیا د پاره د مونځونو په وخت کښ شریعت وسعت او فراخوالے ایخودے دے - په مقرره وختونو کښ دننه مونځ صحیح او درُست دے - په دے وختونو کښ بعضے حصے د جواز درجه لری او بعضے حصے د استحباب درجه لری - په مستحب وخت کښ د مونځ کولو کوشش پکار دے -

## د سحر د مونځ وخت د صبح صادق نه نمر ختلو پورے دے

(۱۰۶) د حضرت ابُوهُریره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِنَّ اَوَّلَ وَقْتِ الْفَجْرِ حِیْنَ یَطْلُعُ الْفَجْرُ وَاِنَّ اٰخِرَ وَقْتِهَا حِیْنَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ ط

(ترمذی ص۲۲ ج۱، مسند احمد)

(نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه د سحر د وخت شروع د صبح صادق راختلو وخت دے او د دے آخری وخت تر د نمر راختو پورے دے -

## د سحر د مونځ مُستحب وخت اِسفار دے

(۱۰۷) د حضرت رافع بن خدیج رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اَسْفِرُوْا

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی،

بِالْفَجْرِ فَاِنَّهٗ اَعْظَمُ لِلْاَجْرِ۔ دسحر مونځ اِسفار (یعنی رڼا کښ) کوئ ځکه چه ډیر اَجرو ثواب لری
(ترمذی ج۱ ص۲۲، مشکوٰة ص۶۱، ابوداؤد نحوه ج۱ ص۶۱، مسند دارمی)

دا حدیث حسن صحیح دے۔ حافظ ابن حجر شافعیؒ د فتح الباری جلد ۲ صفحه ۴۵ کښې فرمائیلی دی: (وَصَحَّحَهٗ غَیْرُ وَاحِدٍ) چه ډیرو محدثینو دے حدیث ته صحیح وئیلی دی۔ د اِسفار نه مطلب دا دے چه رڼا ښه خوره شی۔

یو مرفوع حدیث دے:

(۱۰۸) اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَسْفَرْتُمْ بِالْفَجْرِ فَاِنَّهٗ اَعْظَمُ لِلْاَجْرِ۔ (نسائی ج۱ ص۶۴) رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه څومره تاسو په اسفار کښ مونځ کوئ هغومره به اَجر او ثواب زیات ملاویږی۔

د دے سند صحیح دے۔ (نصب الرایه جلد اول ص۲۳۸)

(۱۰۹) د حضرت رَافِع بن خَدِیج رضی الله عنه دویم مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَا بِلَالُ نَوِّرْ بِصَلٰوةِ الصُّبْحِ حَتّٰی یُبْصِرَ الْقَوْمُ مَوَاقِعَ نَبْلِهِمْ مِنَ الْاِسْفَارِ۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل، اے بلاله! د سحر مونځ په رڼا کښ اداکوئ ترهغے چه خلق د رڼا د وجے نه د تیرېدلو تلوځایونه اُووینی۔

(مصنف ابن ابی شیبة، مسند اسحٰق بن راهویه، طبرانی، کتاب الحجج امام محمد، ابوداؤد طیالسی)

(۱۱۰) د حضرت رَافِع رضی الله عنه دریم مرفوع حدیث دے،

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَوِّرُوْا بِالْفَجْرِ فَاِنَّهٗ اَعْظَمُ الْاَجْرِ۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د سحر مونځ رڼا کښ ادا کوئ ځکه چه په دیکښ ډیر زیات اَجر او ثواب دے۔
(طبرانی کبیر)

(۱۱۱) د حضرت اَبُوهُرَيرَه رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ لَا تَزَالُ اُمَّتِیْ عَلَی الْفِطْرَۃِ مَا اَسْفَرُوْا بِصَلٰوۃِ الْفَجْرِ۔ (مسند بزار، طبرانی اوسط)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه زما اُمت به همیشه په فطرت قائم وی ترڅو پورے چه دوی د سحر مونځ په رڼړا کښې کوی۔

د دے مضمون مرفوع حدیث د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ نه هم روایت شوید ے۔ (طبرانی) د اسفار مرفوع احادیث د دے لاندینو صحابه کرامو رضی اللہ عنہم نه هم روایت شویدی۔

حضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ (طبرانی) حضرت قتادہ بن نعمان رضی اللہ عنہ (طبرانی، مسند بزار) حضرت حوا انصاریۃ رضی اللہ عنہا (طبرانی)۔ د دے احادیثو تفصیل په نَصْبُ الرَّایه جلد اَوّل صفحه ۲۳۵ نه صفحه ۲۳۷ پورے او عُمْدَۃُ الْقَارِی جلد ۳ صفحه ۹۰ شرح صحیح بخاری کښې اُوګورئ۔ اګرچه د دے سند ونو کښې خبرے شته دے۔ بیا هم محدثینو د اُصولو مطابق د تائید د پاره پیش کولے شی۔

(۱۱۲) حضرت اِبراهیم نخعی تابعی رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

مَا اَجْمَعَ اَصْحَابُ مُحَمَّدٍ عَلٰی شَیْءٍ مَا اَجْمَعُوْا عَلَی التَّنْوِیْرِ بِالْفَجْرِ۔ (مصنف ابن ابی شیبة ص۳۲۲ ج۱)

صحابه کرامو رضی اللہ عنہم چه څومره د سحر مونځ په اسفار کښې کولو بانڼ اِجماع کړیده د ومره اجماع او اتفاق ئے په بل څیز نه دے کړے

دا حدیث په صحیح سند سره طحاوی صفحه ۱۳۶ جلد ۱ کښې روایت شوید ے۔ (نصب الرایه جلد ۱ ص۲۳۹)

حضرت محدث سیوطی شافعی رحمۃ اللہ علیہ "اَلْاَزْهَارُ الْمُتَنَاثِرَہ" کښې لیکی چه د اسفار احادیث متواتر دی۔ (معارف السنن شرح ترمذی ص۴۵ جلد ۱)

**فائدہ:-** په بعض مرفوع احادیثو کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د سحر مونځ په غلس (تیاره) کښې کړیدے - بعض محققینو ددے په توجیه کښې لیکلی دی چه بیشکه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم عمل عام طور په غلس یعنی تیاره کښې د مونځ کولو لیکن دعا موخلقو د اسانتیا دپاره نبی کریم صلی الله علیه وسلم اُمت ته په اسفار یعنی رڼا کښې مونځ کولو ترغیب ورکړیدے - نو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دارشاد د وجے نه اُمت دپاره په اسفار کښې مونځ کول غوره او بهتر دی - (اوجز المسالک شرح مؤطا امام مالک صـ۸)

## د ماسپخین وخت د زوال نه تر سورے دوه مثل پورے دے

د حضرت ابُو هریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۱۱۳) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم إِنَّ أَوَّلَ وَقْتِ الظُّهْرِ حِيْنَ تَزُوْلُ الشَّمْسُ وَآخِرَ وَقْتِهَا حِيْنَ يَدْخُلُ وَقْتُ الْعَصْرِ

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د ماسپخین مونځ وخت ابتداء د نمر د زوال نه پس تر ماز یګر وخت پورے دے:

(ترمذی صـ۲۲ جلد اوّل، مسند امام احمد)

(۱۱۴) د حضرت ابُو هریره رضی الله عنه موقوف حدیث دے چه د هغے سند صحیح دے -

صَلِّ الظُّهْرَ إِذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثْلَكَ وَالْعَصْرَ إِذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثْلَيْكَ -

د ماسپخین مونځ کوه چه کله ستا سورے یو مثل شی یعنی ستا هومره شی او د ماز یګر مونځ کوه چه کله ستا سورے ستا دبل شی)

(مؤطا امام مالک صـ۵ باب وقوت الصلوٰة)

(۱۱۵) د حضرت ابُو ذر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ كُنَّا فِيْ سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم

حضرت ابُو ذر رضی الله عنه فرمائی چه مونږ په

فَاَرَادَ الْمُؤَذِّنُ اَنْ يُّؤَذِّنَ فَقَالَ لَهٗ اَبْرِدْ ثُمَّ اَرَادَ اَنْ يُّؤَذِّنَ فَقَالَ لَهٗ اَبْرِدْ ثُمَّ اَرَادَ اَنْ يُّؤَذِّنَ فَقَالَ لَهٗ اَبْرِدْ حَتّٰى سَاوَى الظِّلُّ التُّلُوْلَ۔

(بخاری ج۱ ص۸۷ باب الاذان للمسافرین)

یو سفر کښې نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم سره وُو۔ مؤذن (د ماسپخين مانځه دپاره) اذان کولو اراده اُوکړه۔ نبی علیہ السلام اوفرمائيل چه تاخير اُوکړه۔ هغهٔ (لږ وخت پس) بيا د اذان کولو اراده اُوکړه نو نبی علیہ السلام اُوفرمائيل، صبر اُوکړه۔ هغهٔ بيا د اذان اراده اُوکړه نو نبی علیہ السلام دريم ځل اُوفرمائيل چه تاخير اُوکړه تر دے پورے چه د پولو سورے د هغے برابر شو (نو بيا اذان او مونځ اُوشو۔)

**فائده:**۔ ظاهره خبره ده چه د پولو سورے د پولو برابر خو د يو مثل سورى نه کيږى۔ د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه د تحقيق مطابق د ماسپخين وخت تر دوه مثله پورے وى۔ د دوؤ مثلو نه پس د مازيګر وخت شروع شى۔ د بخارى شريف دا مذکوره حديث واضحه د امام ابوحنيفه د تحقيق ماخذ دے ليکن د دريواړه امامان او صاحبين په تحقيق کښې د ماسپخين وخت يو مثل پورے دے۔ د دے وجے نه احتياط په ديکښې دے چه د ماسپخين مونځ په اول مثل کښې کول او د مازيګر مونځ د دوؤ مثلو نه پس کول پکار دے چه په اجماعى وختونو کښې مونځ ادا شى۔

(شامى ج۱ ص۲۶۱، فتح القدير ج۱ ص۱۹۳، بحر الرائق ج۱ ص۲۳۵)

## د ماسپخين مونځ مستحب وخت

د حضرت انس رضى الله عنه مرفوع حديث په نسائى کښې په دے الفاظو سره روايت شوے دے:

(۱۱۶) كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم رسول الله صلى الله عليه وسلم به چه کله ګرمی به وه

إِذَا كَانَ الْحَرُّ أَبْرَدَ بِالصَّلٰوةِ وَإِذَا كَانَ الْبَرْدُ عَجَّلَ ۔ (النسائی ص ۸۷ ج ۱، مشکوٰة ص ۶۲)

نو د ماسپښین مونځ کښې به ئې تأخير کوؤلو او چه يخني به وه نو جلتي به ئې کوؤله (يعنې اول وخت کښې به ئې کوؤلو)

(۱۱۷) د حضرت ابوهريره او حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما مرفوع حديث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَأَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ ۔ (بخاری ص ۷۷ ج ۱ باب الابراد فی الظهر فی شدة الحر، مسلم ج ۱ ص ۲۲۴، باب استحباب الابراد بالظهر فی شدة الحر۔)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه کله سخته ګرمي وي نو مونځ کښې تاخير کوئ ځکه چه ګرمي د جهنم د تاؤ او تپ نه ده۔

(۱۱۸) د حضرت ابوذر رضی الله عنه مرفوع حديث دے:

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَأَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ ۔ (بخاری ص ۷۷ ج ۱، مسلم ص ۲۲۴ ج ۱)

نبي اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه کله سخته ګرمي وي نو مونځ کښې تاخير کوئ۔

د حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه مرفوع حديث دے:

(۱۱۹) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْرِدُوْا بِالظُّهْرِ فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ ۔ (بخاری ص ۷۷ جلد اوّل)

نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه د ماسپښين مونځ کښې تاخير کوئ ځکه چه ګرمي د جهنم د تاؤ او تپ نه ده۔

محدث ابن حجر شافعیؒ التلخيص الحبير مع شرح المهذب ص ۵۱ جلد ۳ کښې ليکلي دي، فرمائي چه دا حديث: "إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَأَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ ۔" د ډيرو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه په دے لانديني کتابونو کښې روايت شويدے۔

لکه چه د حضرت اَبُوذَر رضی الله عنه نه بخاري او مسلم کښ، د حضرت اِبنِ عُمر رضی الله عنه نه بخاري وغیره کښ، د حضرت اَبُو موسیٰ اَشعري رضی الله عنه نه نسائي کښ، د حضرت عائشه رضی الله عنها نه صحیح ابن خُزَیمه کښ، د حضرت مُغیره رضی الله عنه نه مسند امام احمد او ابن ماجه کښ، د حضرت اَبُوسعید رضی الله عنه نه بخاري کښ، د حضرت عمرو بن عَبَسه رضی الله عنه نه طبراني کښ، د حضرت صَفوان رضی الله عنه نه مُصنّف اِبن اَبی شَیبَه او مستدرک حاکم کښ او د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مسند بزّار کښ روایت شوی دے الخ۔

**فائده:۔** بعض صحیح اَحادیثو کښ د ماسپخین مونځ کښ تَعجیل یعنی جَلتي او په اول وخت کښ کول هم ذکر شوی دے۔ د تحقیق خاوندانو د دے مختلف توجیهات کړی۔ یوه توجیه او تطبیق خو دا دے چه د تَعجیل حدیثونه د گرمئ په موسم باندِ حَمل کړی۔ د دے توجیه او تطبیق واضحه دلیل د حضرت اَنس رضی الله عنه دا ذکر شوے حدیث دے: "اِذَا کَانَ الْحَرُّ اَبْرَدَ بِالصَّلٰوةِ وَاِذَا کَانَ الْبَرْدُ عَجَّلَ۔" چه کله به گرمی وه نو نبی علیه السلام به مونځ تاخیر سره کولو او چه کله به یخنی وه نو اول وخت کښ به ئے کولو۔

دویمه توجیه د حضرت اِمام احمد بن حَنبل رحمة الله علیه نه نقل شوی ده: "اٰخِرُ الْاَمْرَیْنِ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صلی الله علیه وسلم اَلْاِبْرَادُ۔" (فتح الباری شرح بخاری ج ۲ ص ۱) یعنی د تعجیل حدیثونه په ابتدائی زمانه باندِ محمول دی۔ او اِبراد او تاخیر والا حدیثونه په آخری زمانه باندِ محمول دی۔ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم آخری عمل په اِبراد او تاخیر باندِ وَو۔ بهرحال د ذکر شوو احادیثو په رڼا کښ د گرمئ په

موسم کښې مونځ تاخیر سره کول غوره او بهتر دی۔

## دمازیګر وخت دماسپخین د آخر وخت نه تر نمر پریوتو پورې دے

دحضرت ابُوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۱۲۰) اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَدْرَكَ رَکْعَةً مِّنَ الْعَصْرِ قَبْلَ اَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ اَدْرَكَ الْعَصْرَ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د نمر پریوتو نه مخکښ دمازیګر دمونځ یو رکعت چا اُونیوَو نو ده دمازیګر مونځ اُونیوَو۔

(بخاری ص ۸۲/۱ج، مسلم ص ۲۲۱/۱ج، وبقیه صحاح ستّه)

(۱۲۱) دحضرت عبدالله بن عمرو بنِ العاص رضی الله عنه مرفوع حدیث دے

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَقْتُ صَلٰوةِ الْعَصْرِ مَالَمْ تَصْفَرَّ وَ یَسْقُطْ قَرْنُهَا الْاَوَّلُ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، د مازیګر مونځ وخت تر نمر زیړیدو پورې دے او چه دده اوله کناره پریوځی۔

(مسلم ج۱ ص۲۲۳ باب اوقات الصلوٰة الخمس)

## دمازیګر مونځ مُستحب وخت د نمر زیړیدو نه مخکښ دے

دحضرت جریر بن عبدالله رضی الله عنه مرفوع حدیث دے۔

(۱۲۲) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ لَّا تُغْلَبُوْا عَلٰی صَلٰوةٍ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ غُرُوْبِهَا فَافْعَلُوْا ثُمَّ قَرَءَ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی که چرې ستاسو طاقت کښ دا خبره وی که چرې تاسو د سحر او مازیګر مانځه کښ مغلوبه نه شئ نو دا سې اُوکړئ (دد ے مونځونو پابندی کوئ) بیا حضرت جریر رض (دد ے

طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا۔
(بخاری ج۱ ص۷۸ باب فضل صلوٰۃ العصر، مسلم ج۱ ص۲۲۸ باب فضل صلوٰۃ الصبح والعصر، ابوداؤد کتاب السنۃ)

حدیث پہ تائید کښې) دا آیت اُولوستو فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا ۔" او د نمر د ختو او د غروبیدو نه مخکښې د خپل رب ثناء سره تسبیح کوئ

(۱۲۳) د حضرت عماره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَّلِجَ النَّارَ اَحَدٌ صَلّٰى قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا يَعْنِي الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ۔

رسولِ اکرم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه چا د نمر ختو او نمر پریوتو نه مخکښې یعنې د سحرا و ماز یگر مونځ پابندئ سره اُوکړو هغه به هیچرې دوزخ ته داخل نشی۔

(مسلم ج۱ ص۲۲۸، نسائی ج۱ ص۸۲ باب فضل صلوٰۃ العصر، مسند امام احمد)

د دے احادیثو نه یو خوخبرے معلومیږی:

۱:- په قرآن مجید کښې چه کوم ځائ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ او قَبْلَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ ۵ د تسبیح او تحمید حکم راغلے دے، د هغې نه د سحر او ماز یگر مونځونه مُراد دی۔

۲:- د حدیث او تفسیر او د نورو ټولو اسلامی او عربی علوموکښې مسلّم امام علامه محمد انور شاه کشمیری رحمة الله علیه "عقیدة الاسلام" کښې لیکلی دی: "قَبْلَ الطُّلُوْعِ او قَبْلَ الْغُرُوْبِ د فصحاء په استعمال کښې طلوع او غروب نزدے وختونو دپاره وئیلے کیږی ځکه چه په عربئ کښې چه کله څوك وائی اٰتِيْكَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ چه څه به تاته د نمر پریوتو نه مخکښې راځم نو مخاطب هم دا گنړی چه د نمر پریوتو نه به لږ مخکښې راځی۔ دوه درے گهنټے د نمر پریوتو نه هیڅوك مطلب نه اخلی

(فتح الملہم شرح مسلم ج۱ ص۲، التعلیق الصبیح، شرح مشکوٰۃ ج۱ ص۲۷۸، ج۱ ص۲۹)

دے وجے نه د قرآن او حدیث مذکوره نصوص نه د سحر او ماازیګر مونځ د اول وخت نه لږ شان تاخیر سره اداکول مستحب معلومیږي۔ دکتاب او سنت دا اشاره او استنباط ډیروزنی او اهم دے۔

(۱۲۴) د حضرت اُمِّ سلمه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ تَعْجِيْلًا لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ وَأَنْتُمْ أَشَدُّ تَعْجِيْلًا لِلْعَصْرِ مِنْهُ۔

(ترمذی ص۲۳ ج۱، مسند احمد مشکوٰة ص۶۲)

اُمُّ المؤمنین حضرت اُمِّ سلمه رضی الله عنها خلقوته اُو فرمائیل چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به د ماسپخین مونځ د تاسو نه مخکښ کولو او تاسو د ماازیګر مونځ د هغوی نه مخکښ کوئ

دا حدیث صحیح دے۔ (معارف السنن، شرح ترمذی ص۱۷ جلد۲)

دے نه دا واضحه شوه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به د ماازیګر مونځ د اول وخت نه لږ روستو کولو۔

(۱۲۵) د حضرت علی بن شَیبان رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ قَدِمْنَا عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ فَكَانَ يُؤَخِّرُ الْعَصْرَ مَا دَامَتِ الشَّمْسُ بَيْضَاءَ نَقِيَّةً۔ (ابو داود ص۶۵ ج۱ باب فی صلوٰة العصر، ابن ماجه)

حضرت شیبان رضی الله عنه فرمائیلی دی، مونږ د مدینه منوره کښ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خدمت کښ حاضر شو نو نبی علیه السلام د ماازیګر مونځ تاخیر سره اداکولو ترکومه چه نمر صفا او سپین وو۔

(۱۲۶) د حضرت رافع بن خَدیج رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِتَأْخِيْرِ الْعَصْرِ۔ (مسند احمد، دار قطنی، بیهقی، طبرانی کبیر)

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د ماازیګر مونځ د تاخیر حکم ورکولو۔

❁ ❁ ❁ ❁

دا دواړه آخري حديثونه د سند په لحاظ سره ضعيف دي ليکن بيا هم د محدثينو د اصولو مطابق د تائيد د پاره پيش کړلے شي۔

(۱۲۷) خليفهٔ راشد حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابوموسیٰ اشعري رض ته اوليکل:

صَلِّ الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ بَيْضَاءُ نَقِيَّةٌ قَبْلَ اَنْ تَدْخُلَهَا صُفْرَةٌ۔ (موطا امام مالک ص۸ سند قوي)

د مازيګر مونځ د نمر زيړيدو نه مخکښ کوئ چه کله نمر سپين وي۔

(۱۲۸) اِنَّ ابْنَ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه كَانَ يُؤَخِّرُ الْعَصْرَ۔ (طبراني کبير و رجاله موثقون)

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د ماز يګر مونځ تاخير سره کړلو۔

فائده:- بعض صحيح احاديثو کښ د مازيګر مونځ جلتي سره او اول وخت کښ ادا کولو ذکر راغلے دے۔ دا پاس ذکر شوي ايتونو او احاديثو په رڼا کښ د تعجيل والا حديثونه د جواز او بعض وختونو باندې حمل کړيدي۔ (فتح الملهم شرح صحيح مسلم ص۲۰۱ ج۱)

## د ماښام مونځ وخت

د ماښام مونځ وخت د نمر پريوتو نه تر شفق ډوبيدو پورے دے:

(۱۲۹) د حضرت ابوهريره رضي الله عنه مرفوع حديث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم اِنَّ اَوَّلَ وَقْتِ الْمَغْرِبِ حِيْنَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ وَاِنَّ اٰخِرَ وَقْتِهَا حِيْنَ يَغِيْبُ الْاُفُقُ۔ (ترمذي ص۲۲/۱ ، مسند احمد)

نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه د ماښام اول وخت نمر پريوتل دي۔ او آخر وخت لے افق (شفق) ډوبيدل دي۔

(۱۳۰) د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه ... حديث دے

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَقْتُ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ مَا لَمْ یَغِبِ الشَّفَقُ۔

رَسُول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دي چه د ماښام مونځ وخت د شفق د ورېدو پورې دے۔

(مسلم ص۲۲۳ ج۱، ابوداؤد، مشکوٰة ص۵۹)

**فائده:**- د شفق لفظ د نمر پريوتو نه پس سُرخي او د سرخئ نه پس سپين والي دے دواړو د پاره استعماليږي۔ د امام اعظم اَبُوحنيفه رح د تحقيق مطابق دلته د شفق نه مراد سپين والي دے چه د سور والي نه پس مغرب طرفته په نظر راځي۔

د دے دليل د حضرت جابر رضی الله عنه لاندينے حديث دے:

(۱۳۱) ثُمَّ اَذَّنَ بِلَالٌ رض لِلْعِشَاءِ حِيْنَ ذَهَبَ بَيَاضُ النَّهَارِ وَ هُوَ الشَّفَقُ۔ (طبرانی اوسط)

حضرت بلال رضی الله عنه د ماسخوتن اذان اوکړو چه کله د ورځے سپين والے شو او هغه شفق دے۔

د دے سند حسن دے۔ (حاشيه نصب الرايه ص۲۳۳ ج۱)

## د ماښام د مونځ مستحب وخت

د ماښام مونځ هميشه که يخني وي او که ګرمي وي،

نمر پريوتو نه پس فوراً اداکول مستحب دي:

(۱۳۲) د حضرت اَبُو ايُّوب رضی الله عنه مرفوع حديث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ اُمَّتِيْ بِخَيْرٍ اَوْ قَالَ عَلَى الْفِطْرَةِ مَا لَمْ يُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ۔

(ابوداؤد ص۶۱ ج۱، مشکوٰة ص۶۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دي چه د اُمت به هميشه په نيکئ باندِ قائم د او يا ئے اُوفرمائيل په فطرت او سنت باندِ به قائم وي تر څو چه دوی د ماښام مونځ کښ تاخير نه کوی۔

اِمام حاکم په مستدرک کښې لیکلی دی چه: "صحیحٌ علیٰ شرط مُسلم" (نصب الرایه ص۲۳۶ ج۱) دا حدیث د مسلم په شرط باندِ صحیح دے۔

## د ماسخوتن د مونځ وخت

د ماسخوتن د مونځ وخت د شفق د ورسیدو نه پس تر صبحِ صادق پورے وی۔

د حضرت اَبُو هریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۱۳۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوَّلَ وَقْتِ الْعِشَاءِ حِيْنَ يَغِيْبُ الْاُفُقُ (ترمذی ص۲۲ ج۱، مسند احمد)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، د ماسخوتن د مونځ اول وخت هغه وی چه کله شفق غائب شی۔

(۱۳۴) د حضرت بُرَيْدَه رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

ثُمَّ أَمَرَهُ بِالْعِشَاءِ حِيْنَ يَسْوَدُّ الشَّفَقُ۔ (مسلم ص۲۲۳ ج۱)

بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت بلال رضی الله عنه ته د ماسخوتن د مانځه حکم اُوکړو چه کله شفق غائب شو۔

(۱۳۵) د حضرت اَبُو مَسعود رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

وَيُصَلِّي الْعِشَاءَ حِيْنَ يَسْوَدُّ الشَّفَقُ۔ (ابوداود ص۶۳ ج۱ باب فی المواقیت)

او نبی صلی الله علیه وسلم د ماسخوتن مونځ اُوکړو چه کله اُفق (د آسمان په کنارو) تیاره شوه۔

(۱۳۶) د حضرت عائشه صدّیقه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے۔

أَعْتَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ حَتّٰى ذَهَبَ عَامَّةُ اللَّيْلِ وَحَتّٰى نَامَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلّٰى۔ (مسلم ج۱ ص۲۲۹ باب

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یوه شپه د ماسخوتن مونځ کښې تاخیر اُوکړو تر هغې پورے چه د شپې زیاته حصه تیره شوه او د جمات خلق اُوده شو بیا نبی علیه السلام تشریف

وقت العشاء، نسائی ص ۹۳/۱۲۰) راؤړو او مونځ ئے اوکړو۔

(۱۳۷) دحضرت انس رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

أَخَّرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ ذَاتَ لَيْلَةٍ إِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ۔ (مسلم ص ۲۲۹ جلد ۱)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم یوه شپه دماسخوتن مونځ ترنیمے شپے پورے روستو کړو۔

(۱۳۸) دحضرت ابوموسیٰ رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

إِعْتَمَ بِالصَّلٰوةِ حَتّٰى ابْهَارَّ اللَّيْلُ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلّٰى بِهِمْ۔ (مسلم ص ۲۲۹ ج ۱)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم دماسخوتن مونځ روستو کړو تردے چه نیمه شپه تیره شوه۔ بیا ئے تشریف راوړو او هغوی ته ئے مونځ اوکړو۔

(۱۳۹) حضرت عمر رضی اللہ عنہ حضرت ابوموسیٰ اشعری رضی اللہ عنہ ته دمونځ وختونه تفصیل سره اولیکل او ورته ئے اوفرمائیل:

وَصَلِّ الْعِشَاءَ أَيَّ اللَّيْلِ شِئْتَ وَلَا تُغْفِلْهَا۔ (طحاوی ص ۹۳/۱۲۱، ورجاله ثقات)

او دماسخوتن مونځ چه دشپے کومه حصه کښ دِخوښه وی اوکړه او پریږده ئے مه۔

## دماسخوتن دمونځ مستحب وخت

دماسخوتن دمونځ مستحب وخت دمخے درېیمے حصے ته نزدے دے:

(۱۴۰) دحضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلٰى أُمَّتِيْ لَأَمَرْتُهُمْ أَنْ يُّؤَخِّرُوا الْعِشَاءَ إِلٰى

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم اوفرمائیل که چرے ما ته په امت دتکلیف خطره نه وے نو ما به دوی ته حکم کړے وو چه د

ثُلُثِ اللَّيْلِ اَوْ نِصْفِهٖ۔
(ترمذی ص۲۳ ج۱ وقال الترمذی حَسَنٌ صحیح،
ابن ماجہ، مسند احمد، مشکوٰۃ ص۶۱)

ماسخوتن مونځ په وړمبئ دریمه حصه کښې یا نیمې شپې پورې روستو کوئ۔

(۱۳۱) د حضرت اَبُو برزه رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:
وَكَانَ يَسْتَحِبُّ اَنْ يُّؤَخِّرَ الْعِشَاءَ...... وَفِيْ رِوَايَةٍ وَّلَا يُبَالِيْ بِتَاخِيْرِ الْعِشَاءِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ۔ (بخاری ص۷۸ ج۱ و مسلم ص۲۳۰ ج۱، مشکوٰۃ ص۶۰)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم به په ماسخوتن مونځ کښې تاخیر خوښولو۔ او په یو روایت کښې دی چه نبی علیه السلام به د دے پرواه نۀ کوله چه مونځ به د شپې دریمې حصے ته روستو شو۔

# د ماسخوتن وخت کښې د کمزوری او بیمار خیال ساتل

اگرچه د ماسخوتن مونځ په اُصولی طور بانِ دریمې حصے شپې ته روستوکول مستحب دی خو بیا هم په دیکښې د کمزورو معذورو او بیمارو مقتدیانو خیال ساتل هم ضروری دی۔

د حضرت اَبُو سعید خدری رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے چه یو ځل نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم د ماسخوتن مونځ نیمې شپې ته نزدے اُوکړو او وې فرمائیل:

۱۳۲ لَوْلَا ضَعْفُ الضَّعِيْفِ وَسُقْمُ السَّقِيْمِ لَاَخَّرْتُ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ اِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ۔

که چرے د کمزورو کمزوری او د بیمارو بیماری نۀ وے نو ما به دا مونځ نیمې شپې پورے روستوکولو۔

(ابوداؤد ص۶۶ ج۱، نسائی، مسند احمد، مشکوٰۃ ص۶۲)

**خلاصه** په دے مخکښې بیان کښې دېنځو وختونو د مونځونو مستحب وختونه د صحیح احادیثو په رڼا کښې بیان شو چه د هغې

خلاصه داده چه د ماښام مونځ کښ که یخني وي او که ګرمي وي جلتي مستحب ده او په یخنۍ کښ د ماسپخین مونځ کښ هم جلتي مستحب ده او باقي ټولو مونځونو کښ که یخني وي او که ګرمي د اول وخت نه لږ تاخیر کول مستحب دے۔

## په اول وخت کښ مونځ کولو احادیثو باندِ تبصره

بعض اِمامان همیشه د ټولو مونځونو په اول وخت کښ د کولو قائل دی۔ دهغوی دلیل دا لاندینی احادیث دي:

د حضرت اُمِّ فَروَه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے:

(۱۴۳) سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَیُّ الْاَعْمَالِ اَفْضَلُ قَالَ الصَّلٰوةُ فِیْ اَوَّلِ وَقْتِهَا۔ (ترمذی ج۱ ص۲۲، ابوداؤد، مشکوٰة ص۶۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوشو چه کوم عمل بهتر دے۔ وے فرمائیل په اول وخت کښ مونځ کول۔

**تبصره** حضرت امام ترمذی رحمة الله علیه په دے حدیث باندِ تبصره کوی او لیکلی ئے دی:

حَدِیْثُ اُمِّ فَرْوَةَ لَا یُرْوٰی اِلَّا مِنْ حَدِیْثِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ الْعُمَرِیِّ وَلَیْسَ هُوَ بِالْقَوِیِّ عِنْدَ اَهْلِ الْحَدِیْثِ وَاضْطَرَبُوْا فِیْ هٰذَا الْحَدِیْثِ۔ (ترمذی ج۱ ص۲۲، باب ماجاء فی الوقت الاول من الفضل۔)

د حضرت فروه رضی الله عنها دا ذکرشوے حدیث صرف د عبد الله بن عمر العمری په واسطے سره روایت شوے دے او هغه د محدثینو په نزد قوی نهٔ دے۔ دویم خبره دا ده چه په دے حدیث کښ اضطراب دے او مضطرب حدیث ضعیف وی۔

محدّث دارقطنیؒ په کتاب العلل کښې ددے حدیث اضطراب او اختلاف ډیر په تفصیل سره بیان کړیدے۔ (نصب الرایه ج۱ ص۲۴۱)

حضرت محدث بنّوریؒ لیکلی دی۔

وَقَدْ صَرَّحَ اَحْمَدُ ثُمَّ الْبَیْهَقِیُّ ثُمَّ النَّوَوِیُّ ثُمَّ الْحَافِظُ اِبْنُ حَجَرٍ وَغَیْرُهُمْ مِنَ الْحُفَّاظِ اَنَّهٗ رُوِیَ هٰذَا الْحَدِیْثُ بِاَسَانِیْدَ کُلُّهَا ضَعِیْفَةٌ۔ (معارف السنن، شرح ترمذی ج۲ ص۸۵)

حضرت امام احمد بن حنبلؒ، محدث بیهقی شافعی، محدث نوویؒ شارح مسلم شافعیؒ، حافظ ابن حجر شافعیؒ او نور حفاظ محدثین دا حقیقت په ډیر واضحه بیان کړیدے چه ددے پاسې ذکر شوی حدیث ټول سند ونه ضعیف دی۔

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۱۴۳) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلْوَقْتُ الْاَوَّلُ مِنَ الصَّلٰوةِ رِضْوَانُ اللّٰهِ۔ (ترمذی ج۱ ص۲۴ مشکوٰة ص۶۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د مونځ اول وخت د الله تعالیٰ د رضا سبب دے۔

تبصره | ددے حدیث په سند کښې یو راوی یعقوب بن الولید دے او هغه د محدثینو په نزد ضعیف دے۔ ددے راوی باره کښې محدثینو دا تبصرے کړیدی:

محدث ابن حبانؒ وائی:

کَانَ یَضَعُ الْحَدِیْثَ۔

چه دۀ به حدیث د ځانه جوړول۔

امام احمد بن حنبلؒ فرمائیلی دی:

کَانَ مِنَ الْکَذَّابِیْنَ الْکِبَارِ۔

چه دغه د دروغژنو خلقو نه وو۔

امام ابوداؤد فرمائی:

لَیْسَ بِثِقَةٍ۔

چه هغه د اعتماد قابل نۀ دے۔

امام نسائیؒ فرمائیلی دی:
مَتْرُوْكُ الْحَدِيْثِ۔ چه دده حدیث پریخودلے شویدی (تهذیب التهذیب ج۱۰ ص۳۴۶)
حافظ ابن حجر هم تقریباً هم دغسے تبصره نقل کړیدی ه۔(التلخیص الحبیر ج۲ ص۳۶، مع شرح المهذب) محدث بیهقی خپل کتاب المعرفة او په سنن الکبرٰی کښې لیکلی دی:
رُوِیَ هٰذَا الْحَدِيْثُ بِاَسَانِيْدَ كُلُّهَا ضَعِيْفَةٌ (نصب الرایه ج۱ ص۲۴۳) ددے حدیث ټول سندونه ضعیف دی۔
محدث نوویؒ شافعی شارح مسلم خپل کتاب "الخلاصه" کښې لیکلی دی: اَحَادِيْثُ اَیُّ الْاَعْمَالِ اَفْضَلُ قَالَ الصَّلٰوةُ لِاَوَّلِ وَقْتِهَا وَاَحَادِيْثُ اَوَّلُ الْوَقْتِ رِضْوَانُ اللهِ كُلُّهَا ضَعِيْفَةٌ۔ (نصب الرایه ج۱ ص۲۴۳)
یعنی یاسنی دواړه قِسمه حدیثونه ټول ضعیف دی۔
**فائده**:- بعض محدثینؒ دا پاس ذکر شوی مستحب وختونو والا صحیح اَحادیثو په رڼا کښې دا تطبیق او توجیه ذکر کړیده چه اَول وخت والا اَحادیثونه غوره وخت او د مستحب وخت اوله حصه مراد ده۔ علامه قاریؒ شارح مشکوٰة لیکلی دی:
اَلْمُرَادُ اَوَّلُ الْوَقْتِ الْمُخْتَارُ۔ (مرقات شرح مشکوٰة ج۲ ص۱۳۶) چه مستحب او غوره وخت نه اوله حصه مراد ده۔

## مونځ په خپل وخت کښې کول فرض دے

فرض مونځ په خپل مقرر وخت کښې کول فرض دے او بغیر د عذر نه د خپل وخت نه مخکښې یا روستو کول گناهِ کبیره ده۔
(۱۴۵) د الله تعالیٰ ارشاد دے:

إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا ۝ (سورة نساء ۴/۱۰۳) — بیشکه مونځ په خپل وخت کښې کوټل په مؤمنانو باندې فرض کړے شوے دے۔

د الله تعالىٰ ارشاد دے:

حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ — د مونځونو حفاظت کوئ۔

(البقره ۲/۲۳۸)

مُفَسِّر اِبنِ کثیر شافعیؒ د دے آیت د لاندې لیکلی دی: يَأْمُرُ اللّٰهُ تَعَالٰى بِالْمُحَافَظَةِ عَلَى الصَّلَوَاتِ فِيْ أَوْقَاتِهَا۔ (تفسیر ابن کثیر عربی ۱/۲۹)

"الله تعالىٰ په خپل وخت کښې د مونځونو اداکولو حفاظت حکم کوی۔

(۱۴۷) د الله پاک ارشاد دے:

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ۝ (المؤمنون ۲۳/۹) — او هغه خلق (کامیاب دی) چه د خپلو مونځونو حفاظت کوی۔

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه، حضرت مَسْرُوق تابعیؒ او حضرت قتاده تابعیؒ د دے آیت په تفسیر کښې لیکلی دی، د مونځ د وختونو پابندی د مونځ په حفاظت کښې داخل دے۔ (تفسیر ابن کثیر ۳/۲۳۹)

هم دا مضمون په تفسیر ابن کثیر کښې ص ۴/۴۲۲ باندې هم دے۔

(۱۴۸) د الله تعالىٰ ارشاد دے:

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ۝ (المعارج ۷۰/۳۴) — او هغه خلق چه د مونځونو حفاظت کوی۔

مفسر ابن کثیرؒ د دے آیت د لاندې لیکلی دی: (يُحَافِظُوْنَ) عَلٰى مَوَاقِيْتِهَا وَ أَرْكَانِهَا وَ وَاجِبَاتِهَا وَ مُسْتَحَبَّاتِهَا۔ چه هغه خلق د مونځ د وختونو او ارکانو او واجباتو او مستحباتو خیال ساتی۔ د دے تفصیل

نه دامعلومه شوه چه د مونځ حفاظت په باره کښ د وخت حفاظت اول دے۔

(۱۴۹) دالله تبارك وتعالىٰ ارشاد دے:

هُمْ عَلٰى صَلٰوتِهِمْ دَآئِمُوْنَ ○ — هغوى د خپلو مونځونو پابندى كوى۔
(المعارج ۲۳/۷۰)

مفسر ابن كثيرؒ د دے ايت په تفسير كښ ليكلى دى: "مَعْنَاهُ يُحَافِظُوْنَ عَلٰى اَوْقَاتِهَا وَوَاجِبَاتِهَا قَالَهُ ابْنُ مَسْعُوْدٍؓ وَمَسْرُوْقٌ وَاِبْرَاهِيْمُ النَّخْعِيُّ۔" د دے ايت معنىٰ او مطلب دے د مونځ د وختونو او واجباتو پابندى كول۔ حضرت ابن مسعودؓ او مسروقؒ او ابراهيم نخعيؒ هم دا تفسير كړيدے۔

(۱۵۰) د قرانِ پاك ارشاد دے:

فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ — پس هلاكت دے هغه مونځګذارو دپاره چه په خپلو مونځونو كښ سستى كوى۔
(الماعون: ۱۰۷/۴،۵)

بعضِ سلفوؒ وئيلى دى چه بے وخته مونځ كول په مونځ كښ د سستۍ يو قِسم دے۔

(۱۵۱) د الله پاك ارشاد دے:

فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ — د دے (ذكر شوے انبياء كرامو) نه پس داسے نالائقه جانشين وو چه هغوى به مونځونه ضائع كول۔
(مريم: ۱۹/۵۹)

د بعضِ سلفوؒ د تفسير مطابق بے وخته مونځ كول هم د مونځ ضائع كولو يو قِسم دے۔ (تفسير ابن كثير ص ۱۲۷،۱۲۸/۳،۰)

(١٥٢) دالله تعالیٰ ارشاد دے:
وَيُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ (البقره ۲/۳) او رمُتقيان خلق مونځ قائمُوی.
دبعضِ سلفو مطابق "دمونځ دوختونو پا بندی" هم دمونځ
د اِقامت په مفهوم کښ داخل ده. (ابن کثیر ص ۴۲/۱)
د رَاقِمُ الحُرُوف دناقص تتبُّع او تلاش یعنی لټون مطابق په
قرآن مجید کښ په یوکم څلوښت ۳۹ ایتونو کښ "داِقامتِ صلوٰة" حکم
او ذکر مختلفو عنوانا تو او ډیر وصیغوسره موجود دے. مَصدر
د اِقَامُ الصَّلٰوة) ماضی (اَقَامَ الصَّلٰوةَ) مضارع (يُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ)
آمر (اَقِيمُوا الصَّلٰوةَ) اسم فاعل (مُقِيمُ الصَّلٰوةِ) په ټولو الفاظو
کښ د اِقامتِ صلوٰة اهميّت واضحه شوی دے.
دخبر و حاصل دا دے چه په قرآن کریم کښ د ایمان نه پس
د ټولو نه زیات تاکید دمونځ باره کښ شوید ے. په شلونو ایتونو
کښ اِقامت صلوٰة، محافظتِ صلوٰة، دَوام صلوٰة ډیر عنوانونو
سره دے طرفته خلق متوجه کړیدی.
د ټولو مُفسرینو په نزد دا ټول عنوانات او دد ے معانی او
مفهوم دا تقاضا کوی چه دمونځ فرائض او ارکانو سره سره د
مونځ د وختونو پابندی کول هم فرض او لازم دی. او د وخت
نه کښ د وستو کول مونځ ضائع کول دی او دمونځ نه غفلت دے
چه د نالائقوا و د بدو خلقو شیوه ده.

## دمونځ مقرر وختونه دمُتواترو احادیثو نه ثابت دی

د پنځو فرض مونځونو معلوم وختونه دمتواترو صحیحو احادیثو نه ثابت دی.

په صحاح سِتّه او نورو د اَحادیثو کتابونو کښې د مونځ وختونو باندې مستقل بابونه قائم شویدی۔ په دیکښې په شلونو صحیح احادیث د مونځ په معلوم او مقرر وختونو باندې په وضاحت سره دلالت کوی۔ په دې باره کښې بعض احادیث مختصر طور باندې په وړاندې صفحو کښې ذکر شویدی۔ د تاکید او تَبَرُّك دپاره دا لاندینی احادیث هم مطالعه کړئ۔

(۱۵۳) د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ سَأَلْتُ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اَیُّ الْاَعْمَالِ اَحَبُّ اِلَی اللّٰہِ قَالَ الصَّلٰوۃُ لِوَقْتِھَا۔

(بخاری ج۱ ص۷۶ باب فضل الصلوٰۃ لوقتها، مسلم ج۱ ص۶۲، مشکوٰۃ ص۵۸)

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنهما فرمائیلی دی چه ما د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو چه د الله په نزد د ټولو نه زیات خوښ عمل کوم یو دے. نبی علیه السلام اُوفرمائیل چه په خپل وخت مونځ کول۔

## د مونځ د وختونو عملی تعلیم او د جبرائیل علیه السلام اِمامت

(۱۵۴) په صحیح احادیثو کښې راغلی دی چه د معراج په شپه پنځه وخته مونځونو حکم خو د عرشِ مُعَلّٰی نه پورته د معراج په حالت کښې اُوشو لیکن د دے وختونو عملی تعلیم دپاره حضرت جبرائیل علیه السلام تشریف راؤړو او دوه ورځے د بیت الله شریف سره د نبی کریم صلی الله علیه وسلم (ظاهری طور باندې) امام جوړ شو۔ په رومبۍ ورځ ئے ټول مونځونه په اَول وخت کښې اُوکړل او په دویمه ورځ ئے په آخر وخت کښې اُوکړل او بیا ئے اُوفرمائیل: اَلْوَقْتُ فِیْمَا بَیْنَ ھٰذَیْنِ الْوَقْتَیْنِ۔

(ابوداؤد ج۱ ص۷۰، باب فی المواقیت، ترمذی ج۱ ص۲۰، مشکوٰۃ ص۵۹)

دمونځ وخت دده دواړو (اول، اخر) وختونو په مينځ کښ دے.
قَالَ التِّرْمِذِی: "حَدِیْثٌ حَسَنٌ صَحِیْحٌ." اِمام ترمذی فرمائی چه دا
حدیث حسن او صحیح دے۔

مُحدّث جمال الدّین زَیلعیؒ فرمائیلی دی: حَدِیْثُ اِمَامَةِ جِبْرِیْلَ علیه السلام رَوَاهُ جَمَاعَةٌ مِّنَ الصَّحَابَةِ مِنْهُمْ اِبْنُ عَبَّاسٍ وَجَابِرٌ وَ اَبُوْ مَسْعُوْدٍ وَاَبُوْ هُرَیْرَةَ وَعَمْرُوبْنُ حَزْمٍ وَاَبُوْ سَعِیْدٍ الْخُدْرِیُّ وَاَنَسٌ وَعَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُمْ۔ (نصب الرایه ص۲۲۱ یا ص۲۲۶ جلد اوّل)

دحضرت جبرائیل علیه السلام د اِمامت والا حدیث دلاندینو صحابه کرام رضی الله عنهم دجماعت نه روایت شوے دے:

حضرت عبدالله بن عبّاس، حضرت جابرؓ، حضرت ابومسعود، حضرت ابوهریره، حضرت عمروبن حزم، حضرت ابوسعید خدری حضرت انسؓ، حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهم۔

بیا علّامه زیلعی رحمة الله علیه دخپل معمول مطابق دامرفوع احادیث په شپږ وصفحو باندې ذکر کړیدی۔

د اِمامتِ جبرائیل حدیث په مختصر طریقے سره بخاری شریف ص۴۵۷ ج۱ باب ذکر الملائکة۔ په مُسلم ص۲۲۱ ج۱ باب اوقات الصلوات الخمس کښ هم ذکر شوے دے۔ او په بخاری ص۷۶ ج۱ باندې هم دا حدیث مجمل روایت شوے دے۔

د امامتِ جبرئیل هغه ټوله احادیثونه هم دمونځ د وختونو اهمیّت ښه طریقے سره واضحه کیږی چه دده مسئلے دپاره قولی تعلیم باندې اکتفاء اُونکړه بلکه دعملی تعلیم اهتمام اُوشو او هغه هم مُسلسل دوه ورځو پورے۔

(۱۵۵) حضرت بُریده رضی الله عنه نه روایت دے چه یو سړی دنبی کریم صلی الله علیه وسلم

نه د مونځ وختونو باره کښې تپوس اُوکړو ۔ نبی علیه السلام اُوفرمائیل چه دوه ورځې دلته ایسا رشه مونږ سره مونځ اُوکړه ۔ بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم په اوله ورځ ټول مونځونه په اول وخت کښې اُوکړل او په دویمه ورځ ئې په آخرو وخت کښې اُوکړل ۔ بیا ئې اُوفرمائیل چه: "وَقْتُ صَلٰوتِكُمْ بَيْنَ مَا رَاَيْتُمْ۔" (مسلم ص۲۲۳ ج۱ باب اوقات الصلوات الخمس، مشکوٰة ص۵۹)

ستاسو د مونځونو وخت دده وختونو په مینځ کښې دے چه تا اُولیدل ۔

اګر چه د روزانه مونځ جمع سره کول هم د مونځ د وختونو عملی تعلیم ورکړو ۔ بیا هم د سائل په جواب کښې د مونځ د وختونو ابتداء او انتها ښودلو خاص عملی تعلیم اهتمام اُوشو ۔

## د مونځ روستوکیدلو په سبب باندې سخته دُعا

(۱۵۶) د حضرت علی کرم الله وجهه نه روایت دے چه په غزوهٔ اَحْزَاب کښې یوه ورځ د سخت جنګ په وجه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه د مازیګر مونځ قضا ئشو ۔ نو نبی علیه السلام د نمر پریوتو نه پس ده هغې قضاء اُوکړه او د کافرانو خلاف ئې په سختو الفاظو سره خیرے اُوکړے:

شَغَلُوْنَا عَنِ الصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى صَلٰوةِ الْعَصْرِ مَلَاَ اللّٰهُ بُيُوْتَهُمْ وَقُبُوْرَهُمْ نَارًا۔ (بخاری ص۵۹۰ ج۲ باب غزوة خندق، مسلم ص۲۲۶ ج۱، مشکوٰة ص۶۳)

"دے (مشرکانو) خلقو مونږه د صَلٰوةِ وُسْطٰی یعنی د مازیګر مانځه نه مشغول کړو (منع کړو) الله تعالیٰ دِ د دوی کورونه او قبرونه د اُور نه ډک کړی۔"

**تنبیه** اندازه اُولګوئ چه رَحْمَةٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ صلی الله علیه وسلم د طائف په تبلیغی سفر کښې خبیث کافرانو د کاڼو بارانِ اُوکړو او بدن مبارک

لے دَ وینونہ رنگ بنگ شو۔ نوملا ئکو د اللہ تعالیٰ پہ حکم سرہ دَ دے کافرانو د ڈیرو غروںو پہ میښ کښی د څخزری او ختم کولو پیشکش اُوکړو نو نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم ددے پہ جواب کښی د ھدایت دُعا اُوکړہ (دمعروف احادیثو مضمون) او دلته د کافرانو د مقابلے پہ وجه سرہ مونځ قضا کیدو باندِ دَ نبی علیہ السلام زړۀ ته سخت تکلیف رَسی چه د دے کافرانو خلاف ډیرہ سخته بد دُعا کوی۔

خیال کول پکار دی چه پہ خپل وخت سرہ مونځ کول څومرہ مقام او درجه دہ او د ھغے څومرہ اھتمام وَو۔

## دَ صلوٰۃِ خوف اَحادیثو نه د مونځ د وختونو اَھمیّت

(۱۵۷) دقرانِ پاک پہ سُورۃ نساء کښی د صلوٰۃِ خوف طریقه او اصول او آداب بیان شویدی۔ پہ صحاح سِتّه او نورو اَھمو کتابونو دحدیث کښی "باب صلوٰۃ الخوف" دعنوان دلاندے د صلوٰۃ خوف پہ درجنونو مرفوع احادیث ذکر شویدی چه د ھغے نه واضحه شوہ چه پہ میدانِ جهاد کښی او د عین جنګ پہ وخت کښی هم د مونځ پہ طریقه کښی د کمی ګنجائش شته او پہ مونځ کښی د تلو راتلو هم اجازت شته لیکن وخت کښی د وړاندِ والی وروستو والی اجازت نشته بلکه چه څومرہ ممکن وی نو د وخت پابندی ضروری ګرځولے شویدہ۔

(۱۵۸) د حضرت عبد اللہ بن مَسعود رضی اللہ عنہ نه حدیث روایت شویدے۔

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رضی اللہ عنہ قَالَ مَا رَأَیْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم صَلّٰی صَلٰوۃً لِّغَیْرِ مِیْقَاتِهَا

حضرت عبد اللہ بن مسعود رضی اللہ عنہ فرمائی چه ما رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم بے وخته مونځ کولو باندِ نۀ دے لیدلے (یعنی

إِلَّا صَلٰوتَيْنِ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ بِجَمْعٍ۔ (بخاری ص۲۲۸ ج۱ مسلم ص۴۱۷ ج۱ مشکوٰۃ ص۲۳۰ کتاب الحج)

همیشه به ئے په خپل وخت مونځ کولو لیکن (حجة الوداع کښ) ماښام اوماسخوتن ئے په مُزدَلِفه کښ یوځائ اُوکړل (یعنې دماسخوتن په وخت کښ ئے دماښام اوماسخوتن مونځونه یوځائے اُوکړل)

(۱۵۹) دحضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دویم حدیث روایت شوید ے۔

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ صَلٰوةً لِوَقْتِهَا إِلَّا بِجَمْعٍ وَعَرَفَاتٍ (نسائی ص۴۴ ج۲)

یعنې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به همیشه مونځ په خپل وخت کښ کولو لیکن په (حجة الوداع کښ) اونبی علیه السلام په عرفات کښ دماسپخین اومازیګر دواړه دماسپخین په وخت کښ جمع کړی وُو او په مُزدلفه کښ ئے دماښام اوماسخوتن دماسخوتن په وخت دواړه جمع کړی وُو۔

**فائده:-** حاجیا نو دپاره په عرفات کښ دماسپخین اومازیګر جمع حقیقی اوپه مزدلفه کښ دماښام اوماسخوتن جمع حقیقی دمتواتروایاتو نه ثابت دی او دټول اُمت په دے باندِ اِجماع ده۔ دد ے صحیح احادیثو نه واضحه شوه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دعرفات اومزدلفه نه بغیر په بل هیڅ یوځائ کښ دجمع حقیقی په صورت کښ دوه مونځونه یوځائ نهٔ دی کړی۔

(۱۶۰) دحضرت ابُوقتاده رضی الله عنه نه مرفوع حدیث روایت د ے:

اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا التَّفْرِيْطُ عَلٰى مَنْ لَّمْ يُصَلِّ حَتّٰى يَجِيْءَ وَقْتُ الصَّلٰوةِ الْأُخْرٰى۔ (مسلم ص۲۳۹ ج۱ باب قضاء الصلوٰة الفائتة)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دا د هغه سړی کمزوری ده چه څوک یو مونځ دویم مونځه پورے روستو کړی۔

(۱۶۱) سُئِلَ اَبُوْهُرَيْرَةَ رضی اللہ عنہ مَا التَّفْرِيْطُ فِي الصَّلٰوةِ قَالَ اَنْ تُؤَخَّرَ حَتّٰى يَجِيْئَ وَقْتُ الْاُخْرٰى۔ (طحاوی ص ۱۲۲/۱، بسندٍ صحیح)

د حضرت ابو هریره رضی اللہ عنہ نه چا تپوس اُوکړو چه په مانځه کښ د کمزورئ څه مطلب دے۔ نو هغهٔ ورته اُووئیل چه یو مونځ بل مونځ ته روستوکولو ته تفریط او کمزوری وائی۔"

(۱۶۲) د حضرت ابن عبّاس رضی اللہ عنہ نه روایت دے:

عَنِ النَّبِيِّ صلی اللہ علیہ وسلم مَنْ جَمَعَ بَيْنَ الصَّلٰوتَيْنِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَقَدْ اَتٰى بَابًا مِنْ اَبْوَابِ الْكَبَائِرِ۔ (ترمذی ص ۲۶/۱، باب ما جاء فی الجمع بین الصلوتین)

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه چا بغیر د عذر نه دوه مونځونه یو ځائ اُوکړل نو هغهٔ کبیره گناه اُوکړه۔

**تنبیه** په دے حدیث کښ یو راوی حنش بن قیس ضعیف دے امام ترمذی او بعضِ محدثینو دے حدیث ته ضعیف وئیلی دی لیکن بیا هم د دے حدیث مضمون صحیح دے۔ د قرآن او حدیث نه دا پاس ذکر شوی نصوص (اضاعت الصلوٰة، سهو عن الصلوٰة، تفریط فی الصلوٰة) مطابق دی۔

د دے نه علاوه محدث ابن کثیرؒ په تفسیر کښ او امام حاکم دا حدیث حسن او قوی منلے دے۔ (معارف السنن شرح الترمذی ص ۱۲۶/۲)

(۱۶۳) حضرت عمر رضی اللہ عنہ د اسلامی صوبو ذمه وارحاکمان د یو خط په ذریعه خبردار کړی وُو:

اِنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الصَّلٰوتَيْنِ فِي وَقْتٍ وَّاحِدٍ كَبِيْرَةٌ مِّنَ الْكَبَائِرِ۔

چه دوه مونځونه (بغیر د عذر نه) په یو وخت کښ یو ځائ کول گناهِ کبیره ده

(موطا امام محمد صـ۱۳۲، سنن بیهقی ج ۱۶۹/۱۴)

(۱۶۴) د حضرت اَبُو موسیٰ اَشعری رضی الله عنه ارشاد دے:

اَلْجَمْعُ بَیْنَ الصَّلٰوتَیْنِ مِنْ غَیْرِ عُذْرٍ مِنَ الْکَبَائِرِ۔ — بغیر د عُذر نه په یو وخت کښې دوه مونځونه یوځائی کول گناهِ کبیره ده۔

(مصنف ابن ابی شیبة ج ۴۵۹/۲)

محدث ابنِ اَبی شیبه رحمة الله علیه د امام بخاریؒ او د اِمام مُسلمؒ د استاذانو نه دے:

## جَمَعَ بَیْنَ الصَّلٰوتَیْنِ

بعضِ صحیح احادیثو کښې د سفر په وجه سره "جمع بین الصّلٰوتین" (دوه مونځونه یوځائے کول) ذکر راغلے دے۔ او بعضِ اَئمه کرامو هغه په جمع حقیقی باندِ حمل کړیدے۔ د دوی په نزد دَ سفر دَ وجے نه د ماسپخین او ماز یگر مونځونه د ماز یگر په وخت کښې یوځائے کول او د ماښام او ماسخوتن مونځونه د ماسخوتن په وخت کښې یوځائے کول د جمع والا اَحادیثو مصداق او مطلب دے۔ او صحیح دے۔

د اَئمه اَحنافو او بعضِ نورو محققینو په نزد د جمع والا احادیث په جمع صوری او جمع عملی باندِ حمل کړیدی چه د هغے مطلب دا دے چه د سفر دَ وجے نه د ماسپخین مونځ په خپل اخری وخت کښې او د ماز یگر مونځ په خپل اَول وخت کښې ادا کړے شی۔ په دے صورت کښې به هر مونځ په خپل خپل وخت کښې ادا شی۔ لیکن د صورت او عمل په لحاظ سره دواړه مونځونه یوځائے ادا شول۔ هم دا رنګ چه دَ ماښام مونځ په اخری وخت کښې او د ماسخوتن مونځ په اول دَ وخت کښې اُوشی۔ دے ته جمع صوری یا جمع عملی وئیلی شی۔

دغزوۀ تبوك په لوئے سفر کښې هم په دے صورت عمل شوے وو.
چه سفر ډیر لوئے وو، موسم سخت گرم وو، پا گئی او آودس د پاره
د اُوبو کمے وو. د اسلامی فوج تعداد تقریبًا دیرش زره وو. د دومره
لوئے فوج په دا سے حالاتو کښې بار بار کوزیدل او سوریدل ډیر مشکل
وو ځکه ئے د جمع صوری په شکل کښې آسانتیا اُوکړله.
بهر حال د اروستو ذکر شوے مکتب فکر په تحقیق سره د جمع بین
صلوتین والا احادیث محمل هم دغه جمع صوری او عملی ده. هم
دا توجیه او تطبیق دے لاندینی وجوهات او قرائن او شواهدو
په بنا راجح دے.

## اَوله وجه دَ ترجیح

د مونځ د وختونو تعین قطعی دے او
فرض دے چه د قرآن شریف د ډیرو
آیتونو او په شلونو متواترو احادیثو نه ثابت دے او د ټول اُمت
په دے بانډِ اجماع ده چه د جمع بین صلوتین احادیث ټول خبر
واحد دی. د قرآن د آیتونو او د متواتر احادیثو مقابله کښې په خبر
واحد کښې تأویل ضروری او واجب وی. د دے وجے نه د خبر واحد
احادیثو په جمع صوری او عملی بانډِ حمل کول ضروری دی. چه د
قطعیات مخالف اُونشی. د ظنی دلیل په وجه په قطعی کښې تخصیص
او تأویل کول د انصاف تقاضا نهٔ ده.

## دویمه وجه د ترجیح

بعض احادیثو کښې د جمع الفاظهم
جمع صوری طرفته اشاره کوی. هم
په دے سلسله کښې د حضرت عائشے رضی الله عنها مرفوع حدیث دے
(۱۶۵) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم رسول الله صلی الله علیه وسلم به په سفر کښې د

فِي السَّفَرِ يُؤَخِّرُ الظُّهْرَ وَ يُقَدِّمُ الْعَصْرَ وَ يُؤَخِّرُ الْمَغْرِبَ وَ يُقَدِّمُ الْعِشَآءَ۔

ما سپخین مونځ روستو کؤلو اودمازیګر به ئے مخکښ کؤلو او دماښام به ئے روستو کؤلو او دماسخوتن به ئے وړاندے کؤلو

(مسند امام احمد ج۲ ص۱۳۵، طحاوی ج۱ ص۱۲۳، مستدرک حاکم بسند حسن)

(۱۶۶) دحضرت عبد الله بن عُمر رضی الله عنه موقوف حدیث دے؛

كَانَ قَبْلَ غُيُوبِ الشَّفَقِ فَنَزَلَ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثُمَّ انْتَظَرَ حَتّٰى غَابَ الشَّفَقُ فَصَلَّى الْعِشَآءَ ثُمَّ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَجِلَ بِهٖ أَمْرٌ صَنَعَ مِثْلَ الَّذِيْ صَنَعْتُ۔

(ابوداود ج۱ ص۱۷۸ باب جمع بین الصلوتین، دارقطنی ج۱ ص۳۹۳ بسندٍ صحیح)

حضرت عبد الله بن عُمر رضی الله عنه په یوسفر کښ دغروبِ شفق نه مخکښ دسورلئی نه کوز شو او دماښام مونځ ئے اُوکړو او بیائے لږ انتظار اُوکړو۔ دشفق ډوبید و نه پس ئے دماسخوتن مونځ اوکړو او بیائے اُ وفرمائیل چه .... رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله (په سفر کښ) تلوار کؤله نو هغوی به هم دارنګ کول شنګه چه ما اُوکړل۔"

دحضرت اِبنِ عُمر رضی الله عنه دا حدیث دجمع صوری دپاره واضحه دلیل دے او ددے نه دا هم معلومه شوه چه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم عمل هم جمع صوری وُو۔

(۱۶۷) دحضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ فَجَعَلَ يَجْمَعُ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ يُصَلِّي الظُّهْرَ فِيْ اٰخِرِ وَقْتِهَا وَيُصَلِّيْ

حضرت مُعاذ بن جبل رضی الله عنه فرمائیلی دی چه مونږ ده درسول الله صلی الله علیه وسلم سره دغزوهٔ تبوک په سفر کښ وَتلی وُو نو نبی علیه السلام (او ټول صحابو رض) دماسپخین

اَلْعَصْرَ فِيْ اَوَّلِ وَقْتِهَا۔ (طبرانی اوسط)

او ما زیګر دا رنګه جمع کول چه د ماسپخین مونځ به ئے اخر وخت کښ او د ما زیګر مونځ به ئے اول وخت کښ کولو۔

﴾ ﴾ ﴾

دا مرفوع حدیث هم په جمع صوری او عملی باندِ ښکاره دلیل دے۔

(۱۶۸) حضرت ابو عثمان نهدی رحمة الله علیه د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه موقوف حدیث روایت کوی چه زۀ او حضرت سعد رض د کوفے نه مکے مکرمے ته د حج په سفر باندِ تللو:

فَكَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الظُّهْرِ وَ الْعَصْرِ يُؤَخِّرُ مِنْ هٰذِهٖ وَيُعَجِّلُ مِنْ هٰذِهٖ وَ يُصَلِّيْهِمَا جَمِيْعًا وَ يُؤَخِّرُ الْمَغْرِبَ وَيُعَجِّلُ الْعِشَاءَ ثُمَّ يُصَلِّيْهِمَا جَمِيْعًا۔ (مصنف ابن ابی شیبۃ ص۴۵۷ ج۲، باب من قال یجمع المسافر بین الصلوتین واللفظ له، مسند عبد الرزاق ص۵۴۹ ج۲، طحاوی ص۱۲۳ ج۱ بسند صحیح۔)

حضرت ابن ابی وقاص رضی الله عنه به ماسپخین او ما زیګر دا رنګه جمع کول چه ماسپخین به ئے اخر وخت ته کړو او ما زیګر به ئے اول وخت ته، بیا به ئے دواړه یو ځائے ادا کول۔ ماښام به ئے اخر وخت ته کړو او ماسخوتن اول ته او بیا به ئے دواړه ادا کول۔

## دریمه وجه د ترجیح

په ټوله ذخیره د احادیثو کښ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه صرف هم دغه دوؤ مونځونو کښ جمع کولو ثبوت ملاویږی چه د هغے سرحدات یو بل سره ملاویږی او په مینځ کښ ئے مکروه وخت هم نشته دے ددے وجے نه په جمع صوری او عملی باندِ عمل کیدے شی او هغه صرف د ماسپخین او ما زیګر، او ماښام او ماسخوتن مونځونه دی۔ باقی چه د کوم مونځونو وختونه یو بل سره یو ځائے نۀ دی لکه د سحر او

ما سپخین یا خو وختونه متصل دی یکن په مینځ کښې مکروه وخت دے لکه د مازیګر او ماښام یا ماسخوتن او سحر چه د نیمے شپے نه روستو ماسخوتن مکروه وخت دے - په دے درے واړو صورتونو کښې جمع صوری ممکن نهٔ ده -

دے درے واړو صورتونو کښې د جمع بین الصلوٰتین عمل د نبی علیه السلام هم ثابت نهٔ دے او په اجماع د اُمت سره هم جائز نهٔ دے حالانکه جمع حقیقی په دے ټولو صورتونو کښې ممکن ده - که چرے جمع حقیقی جائز وے نو په دے ټولو صورتونو کښې به د جمع عمل د احادیثو نه ثابت وَو - او هغه به د ټولو په اتفاق سره هم جائز وَو - لیکن دا سے نهٔ ده - د دے تفصیل نه دا حقیقت د "اَلَمْ نَشْرَحْ" شو چه د جمع بَیْنَ الصَّلٰوتَیْنِ محمل او مصداق صرف او صرف جمع صوری او عملی دے - زیات تفصیل د پاره اُوګورئ: (عمدة القاری شرح بخاری ج۷ ص۱۴۸ ومابعده - وفتح الملهم ج۲ ص۲۶۱ ومعارف السنن ج۲ ص۴۸۱ واوجز المسالک شرح مؤطا امام مالکؒ ج۲ ص۵۸) -

## د اَذان عظمت او اَهمیّت

اذان په اصل کښې د اسلام د ټولو نه اهم او بنیادی اُصولو یو جامع اعلان دے - د حق دا دعوت روزانه پنځهٔ وخته د جهان نه خورېږی - په دے کښې بار بار د ټولو نه مخکښې د الله تعالیٰ لوئی او توحید او د عبادت مستحق کېدلو اعلان کېږی:

اَللّٰهُ اَکْبَرُ، اَللّٰهُ اَکْبَرُ ۝ اَللّٰهُ اَکْبَرُ، اَللّٰهُ اَکْبَرُ - چه الله پاک د ټولو نه لوئے دے، الله پاک د ټولو نه لوئے دے - الله پاک د ټولو نه لوئے دے، الله پاک د ټولو نه لوئے دے

اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ -

اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ    "زهٔ ګواهي ورکوم چه د الله پاک نه بغير بل څوک د عبادت لائق نشته، زهٔ ګواهي ورکوم چه د الله پاک نه بغير بل څوک د عبادت لائق نشته."

د دے نه پس د حضرت محمد ﷺ د رسالت د صداقت بار بار اعلان دے:

اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ
اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ    "زهٔ ګواهي ورکوم چه محمد ﷺ د الله تعالیٰ رسول دے۔ زهٔ ګواهي ورکوم چه محمد ﷺ د الله تعالیٰ رسول دے۔"

بیا د مونځ او د کامیابئ دعوت دے:

حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ
حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ    مانځه ته راشئ، مانځه ته راشئ

حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ
حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ    کامیابئ ته راشئ، کامیابئ ته راشئ۔

مونځ په حقیقت کښ د دواړو جهانو د کامیابئ ذریعه ده۔ بیا دیکښ د دُنیا د کامیابئ سره د آخرت د کامیابئ طرفته هم متوجّه کړے شوے دے۔ په آخرکښ بیا د الله تعالیٰ د لوئے والی او د عبادت مُستحق کیدلو اعلان دے:

اَللّٰهُ اَکْبَرُ، اَللّٰهُ اَکْبَرُ    "الله پاك د ټولو نه لوئے دے، الله پاك د ټولو نه لوئے دے۔

لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ۰    د الله پاك نه بغير بل څوک د عبادت لائق نشته."

(۱۶۹) د الله تَبَارَكَ وَتَعَالیٰ ارشاد دے:

وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ    او کله چه تاسو مونځ د پاره آذان کوئ

اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ط ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ٥ (المائدہ ۵۸)

نو (کافران) هغې پورې ټوقې او مسخرې کوي داځکه چه دا دې قوم عقل نشته۔

دې ایت کریمه نه معلومه شوه چه د اذان ادب او احترام ضروري دې۔ او د الله پاك ارشاد دې:

(۱۷۰) يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ط ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ٥ (الجمعة ۹/۲۸)

اے ایمان والو! چه کله د جُمعې په ورځ د مونځ دپاره اذان اُوشي نو د الله تعالیٰ یاد طرفته لاړشئ او خرڅول او اخستل پریږدئ - دا تاسو دپاره ډیر غوره دي که چرې تاسو پوهیږئ۔

دې ایتِ کریمه نه واضحه شوه چه د جُمعې د اذان نه پس کارونه (کاروبار) بندول ضروري دي۔

(۱۷۱) د حضرت ابوسعید خُدری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَسْمَعُ مَدٰى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَّ لَا اِنْسٌ وَّلَا شَيْءٌ اِلَّا شَهِدَ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ (بخاری ۸۶/۱۲، مشکوٰة ص۶۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دي چه د مؤذن اواز ترکومه پورې رسي هغه ځائے پورې پیریان او انسان او کوم څیزونه چه دا اواز اوري هغوي به د قیامت په ورځ د دهٔ دپاره ګواهي ورکوي۔"

بیشکه د مؤذن یعني اذان کونکو ډیره د پسخید و فضیلت دے چه کوم مخلوق د دهٔ اذان اوري نو د قیامت په ورځ به د دهٔ د عظمت او لوئے درجې ګواهي ورکوي۔

(۱۷۲) د حضرت عبد الله بن عُمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَةٌ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي. درې کسان

عَلٰى كُثْبَانِ الْمِسْكِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَبْدٌ اَدّٰى حَقَّ اللهِ وَحَقَّ مَوْلَاهُ وَرَجُلٌ اَمَّ قَوْمًا وَهُمْ بِهٖ رَاضُوْنَ وَرَجُلٌ يُنَادِيْ بِالصَّلَوٰتِ الْخَمْسِ كُلَّ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ - (ترمذی باب ما جاء فی فضل المملوک الصالح ص ج۲، مشکوٰة ص۶۵)

د قیامت په ورځ د کستورۍ په ډیروا و غونډ بانډ به وی. یو هغه غلام چه د الله پاک حقوق او د خپل مالک حقوق ادا کړی. دویم هغه سړے چه هغه د قوم امامت اوکړی او قوم د ده نه راضی وی. دریم هغه سړے چه شپه ورځ د پنځو مونځونو اذان ورکوی.

(۱۷۳) د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَذَّنَ سَبْعَ سِنِيْنَ مُحْتَسِبًا كُتِبَ لَهٗ بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ - (ترمذی ج۱ ص۲۹، ابو داؤد، ابن ماجه، مشکوٰة ص۶۵)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه چا د ثواب د پاره اووه کاله اذان اوکړو نو هغهٔ د پاره د اور نه خلاصے اولیکلے شی.

(۱۷۴) د حضرت ابو هریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُؤَذِّنُ يُغْفَرُ لَهٗ مَدٰى صَوْتِهٖ وَيَشْهَدُ لَهٗ كُلُّ رَطْبٍ وَّيَابِسٍ - (مشکوٰة ص۶۵، ابو داؤد ج۱ ص۸۳، نسائی، ابن ماجه، مسند احمد)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه مؤذن د پاره د هغهٔ د آواز رسیدو پورے د ده بخښنه کیږی او هر اوچ او لوند څیز د ده د پاره ګواهی ورکوی.

## د اذان الفاظ

د حضرت عبد الله بن زید رضی الله عنه مرفوع حدیث کښ دی چه په خوب کښ فرښتے د د اذان تعلیم دا رنګه ورکړے وو.

(۱۷۵) قَالَ تَقُوْلُ اَللهُ اَكْبَرُ اَللهُ اَكْبَرُ، اَللهُ اَكْبَرُ، اَللهُ

چه ته اووایه: اَللهُ اَكْبَرُ، اَللهُ اَكْبَرُ، اَللهُ اَكْبَرُ، اَللهُ اَكْبَرُ، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ

اَکْبَرُ۔ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ
اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔
اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ
اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ
حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ، حَیَّ عَلَی
الصَّلٰوةِ۔ حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ
حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ۔ اَللّٰهُ اَکْبَرُ
اَللّٰهُ اَکْبَرُ۔ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔۔۔۔
فَلَمَّا اَصْبَحْتُ اَتَیْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ
صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهٗ بِمَا رَاَیْتُ
فَقَالَ اِنَّهَا لَرُؤْیَا حَقٌّ اِنْ
شَآءَ اللّٰهُ فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ ؓ فَاَلْقِ
عَلَیْهِ مَا رَاَیْتَ فَلْیُؤَذِّنْ بِهٖ
فَاِنَّهٗ اَنْدٰی صَوْتًا مِنْكَ
فَقُمْتُ مَعَ بِلَالٍ ؓ فَجَعَلْتُ
اُلْقِیْهِ عَلَیْهِ وَیُؤَذِّنُ بِهٖ قَالَ
فَسَمِعَ ذٰلِكَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ
رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ وَهُوَ فِیْ بَیْتِهٖ فَخَرَجَ
یَجُرُّ رِدَآئَهٗ وَیَقُوْلُ وَالَّذِیْ
بَعَثَكَ بِالْحَقِّ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
لَقَدْ رَاَیْتُ مِثْلَ مَا اُرِیَ فَقَالَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ۔

اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنَّ
مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا
رَّسُوْلُ اللّٰهِ۔ حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ، حَیَّ عَلَی
الصَّلٰوةِ۔ حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ
اَللّٰهُ اَکْبَرُ، اَللّٰهُ اَکْبَرُ۔ لَآ اِلٰهَ اِلَّا
اللّٰهُ۔ (حضرت عبد الله بن زید ؓ فرمائی
چه) کله سحر شو نو زهٔ د رسول الله
صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شوم او زهٔ
چه م خوب کښې لیدلی وُو هغه م ورته
بیان کړل۔ نو نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل چه
دا خوب حق او ریښتیا دے اِنْ شَآءَ اللّٰهُ
(نبی علیه السلام ماته اُوفرمائیل) چه ته
حضرت بلال ؓ سره اُودریږه او دا الفاظ
ورته وایه چه کوم لیدلے دی (او ریدلی
دی) هغه به آذان اُوکړی ځکه چه
د هغهٔ آواز ستا نه اُوچت دے۔ نو ما
حضرت بلال ؓ ته د آذان الفاظ وئیل
او هغهٔ اذان کولو۔ حضرت عبد الله ؓ
فرمائی چه حضرت عمر بن خطاب ؓ
په کور کښې آذان واوریدو نو زر زر ئے
خپل څادر راواخستو او بهر ته راؤوتلو
او وے وئیل چه یا رسول الله! (صلی الله علیه وسلم)

(ابوداؤد ص۹ ج۱ باب کیف الاذان) ځما د په هغه ذات قسم وی چه تا سو له په حقه سره رالیږلی یئ چه بیشکه دا سے خوب ما هم لیدلے دے. چه څنګه حضرت عبدالله بن زید ته خودلے شوید ے. نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل: فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ۔

دا حدیث په مسند امام احمدؒ، ابنِ ماجه صحیح ابن حبان، صحیح ابن خزیمه او بیهقی کښں هم روایت شوید ے او د هغے سند صحیح دے. امام بخاری رحمة الله علیه فرمائیلی دی: هُوَعِنْدِیْ صَحِیْحٌ. (کتاب العلل للامام الترمذی، شرح المهذب ج۳ ص۷۷ للنووی، نصب الرایه ج۱ ص۲۵۹ للامام زیلعیؒ. التلخیص الحبیر علی شرح المهذب ج۳ ص۱۶، للحافظ ابن حجر شافعیؒ.)

## په اذان کښں ترجیع نشته دے

په اذان کښں د ترجیع مطلب دا دے چه د شهادت کلمات اول دوه دوه ځله لږ شان په زوره وئیل او بیا دا کلمات سنه په اوچت آواز دوه دوه ځله وئیل دی. پاس ذکر شوی حدیث نه دا واضحه شوه چه په اذان کښں ترجیع نشته دے. علامه اِبْنِ جُوْزِیْ رحمة الله علیه په خپل کتاب "التحقیق" کښں لیکلی دی:

حَدِیْثُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَیْدٍ هُوَ اَصْلُ التَّاذِیْنِ وَلَیْسَ فِیْهِ تَرْجِیْعٌ فَدَلَّ عَلٰی اَنَّ التَّرْجِیْعَ غَیْرَ مَسْنُوْنٍ. (نصب الرایه ص۲۶۳ ج۱)

یعنی د حضرت عبد الله بن زیدؓ ذکر شوے حدیث د اذان دپاره اصل او بنیاد دے چه په هغے کښں د ترجیع ذکر نشته دے نو معلومه شوه چه ترجیع سُنّت نه ده.

(۱۷۶) حضرت بلال رضی الله عنه په سفر او حضر کښں د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم مؤذن وو بلکه رَئِیْسُ الْمُؤَذِّنِیْن وو. د هغهٔ اذان په صحیحو سندونو سره بغیر د ترجیع نه روایت شوید ے. (مغنی ابن قدامة حنبلیؒ ج۱ ط۴۱۶ معارف السنن شرح الترمذی ص۱۷۵ ج۲)

دحضرت عبد الله بن زيد رضی اللہ عنہ داذکر شوے حدیث په مُسند احمد (جلد ۴) کښې روایت شوے دے۔ دددغے حدیث په آخر کښې دا الفاظ هم دی
ثُمَّ اَمَرَ بِالتَّاذِيْنِ فَكَانَ بِلَالٌ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ يُؤَذِّنُ بِذٰلِكَ۔ بیا نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم د آذان کولو حکم وکړو نو حضرت بلال رضی اللہ عنہ هم په دے الفاظو سره اذان کولو۔
ددے حدیث نه دا معلومه شوه چه دحضرت بلال رضی اللہ عنہ آذان د حضرت عبد الله بن زید رضی اللہ عنہ د آذان پشان بغیر د ترجیع نه وُو۔
(۱۷۷) حضرت عبد الله بن اُم مکتوم رضی اللہ عنہ د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم په زمانه کښې په مسجدِ نبوی کښې مؤذّن وُو۔ د هغهٔ په اذان کښې ترجیع نهٔ ده نقل شوے۔ (اوجز المسالک ص ۱۸۶ ج ۱ شرح مؤطا امام مالک)
(۱۷۸) حضرت سعد قُرظ رضی اللہ عنہ په مسجدِ قُباء کښې مؤذّن وُو۔ د هغهٔ اذان د ترجیع نه بغیر وُو۔ (دارقطنی ص ۲۳۶ ج ۱)
(۱۷۹) دحضرت ابنِ عُمر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:
اِنَّمَا كَانَ الْاَذَانُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ۔ چه د رسولِ الله صلی اللہ علیہ وسلم په مبارکه زمانه کښې به د اذان دوه دوه کلمے وے۔
(ابوداؤد ص ۸۳ ج ۱، نسائی ص ۱۰۳ ج ۱، صحیح ابن خزیمه، صحیح ابن حبان، دارقطنی، بیهقی، مسند ابوعوانه، نصب الرایه ص ۲۶۲ جلد اوّل)
ددے حدیث د سند باره کښې مُحدّث ابن الجوزی رحمہ اللہ فرمائی:
وَهٰذَا اِسْنَادٌ صَحِيْحٌ۔ چه دا سند صحیح دے۔
(نصب الرایه ص ۲۶۲ جلد اوّل)
دا حدیث هم په عدمِ ترجیع باندِ دلالت کوی۔
**فائده:-** په ۸ھ کښې د غزوهٔ حُنین نه مکے مکرمے ته واپس تلو

باندِ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم حضرت ابُومحذُورہ رضی اللہ عنہ ته په ترجیع سره اذان کولو تعلیم ورکړے وُو۔ او هغه لۀ په مکه مکرمه کښې مؤذّن مقرر کړے وُو۔ داحدیث د بخاری نه بغیر باقی ټولو صحاح ستّه کښې روایت شوے دے۔ محقّقین علماء د دے پورتنی صحیح احادیثو په رنړاکښې دا توجیه کوی چه حضرت ابُومحذوره نوے مسلمان شوے وُو او دے په مکه مکرّمه کښې مؤذّن مقرر کړے شوے وُو۔ د دۀ په زړه کښې او د اهلِ مکه په زړونو کښې د توحید او رسالت عقیده مضبوط کولو د پاره دۀ ته د ترجیع حکم ورکړے شوے وُو۔ نو دا د هغۀ خصوصیت وُو۔ نو حضرت ابُومحذوره رضی اللہ عنہ د توحید او رسالت عقیده مضبوطه کیدو نه پس هم د برکت د پاره د ترجیع عمل جاری اُوساتلو۔ که چرے د ترجیع مسئله عام شرعی حکم وے نو حضرت بلال او د مدینے متوره نور صحابه کرامو ته به خامخا د دے حکم کیدلو او د دے حضراتو به په دے عمل کولو لیکن خبره د دے نه خلاف ده۔

(فتح الملهم ج۲ ص۵ شرح صحیح مسلم، معارف السنن ج۲ ص۱۸۲ شرح الترمذی)

## د سحر په اذان کښې د الصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ زیاتوالے

د حضرت ابُومحذُورہ رضی اللہ عنہ په مرفوع حدیث کښې دی چه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم هغۀ ته د اذان تعلیم ورکولو د پاره اُوفرمائیل:

(۱۸۰) فَإِنْ كَانَ صَلٰوةُ الصُّبْحِ قُلْتَ اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ، اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔

که چرے د سحر مونځ وُو نو د اذان په آخر کښې وایه: اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ، اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ۔ اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔

(ابوداود ص۷۹ ج۱، باب کیف الاذان وصحیح ابنِ حبان)

(۱۸۱) - حضرت انس رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی:

مِنَ السُّنَّةِ اِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ فِیْ اَذَانِ الْفَجْرِ حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ قَالَ الصَّلٰوةُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ۔ (دارقطنی ص۲۴۳ ج۱، بیہقی، صحیح ابن خزیمہ)

دا خبره سُنت ده چه کله مؤذن د سحر په اَذان کښې حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ اُووائی نو دینه پس دِ وائی: اَلصَّلٰوةُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ۔

محدث بیهقی ددے سند ته صحیح ویلی دی (نصب الرایه ص۲۶۴ ج۱، الدرایه ص۱۲ ج۱) محدث ابن السکن هم دیته صحیح ویلی دی۔ (التلخیص الجبیر ص۱۶۸ ج۳ علی شرح المهذب)

## د اَذان جواب اودهغے فضیلت

د حضرت عُمر رضی اللہ عنہ نه روایت دے:

(۱۸۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ اَللهُ اَکْبَرُ اَللهُ اَکْبَرُ فَقَالَ اَحَدُکُمْ اَللهُ اَکْبَرُ اَللهُ اَکْبَرُ قَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ قَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ثُمَّ قَالَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ قَالَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ ثُمَّ قَالَ حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ قَالَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ ثُمَّ قَالَ حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ قَالَ

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه کله، مؤذن اُووائی: اَللهُ اَکْبَرُ اَللهُ اَکْبَرُ۔ (ددے په جواب کښې) د تاسو نه دِ څوک اُووائی: اَللهُ اَکْبَرُ اَللهُ اَکْبَرُ۔ بیا چه مؤذن اُووائی اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ۔ نو جواب ورکوُنکے دِ اُووائی: اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ۔ بیا چه مؤذن اُووائی: اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ۔ نو جواب ورکوُنکے دِ اُووائی: اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ۔ بیا چه مؤذن اُووائی حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ نو جواب ورکوُنکے دِ

لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ۔ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ۔ قَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ ثُمَّ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مِنْ قَلْبِهٖ دَخَلَ الْجَنَّةَ۔
(مسلم ج۱ ص۱۶۷، مشکوٰة ص۶۵)

اُووائی: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ۔ بیا چه مؤذن اُووائی: حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ نوجواب والا دِ اُووائی لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ۔ بیا چه مؤذن اُووائی اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ۔ نوجواب والا دِ اُووائی اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ۔ بیا چه مؤذن اُووائی لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔ نوجواب ورکوونکے دِ اُووائی لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔ او دا وئیل چه د زړهٔ (د اخلاص) نه وی نوجواب ورکوونکے په جنت ته ځی۔"

**فائده**:- د اذان دوه حیثیته دی۔ یو دا چه دا د جمع مونځ دپاره اعلان او غوښتل دی۔ دویم دا چه دا د ایمان دعوت او د دینِ حق منشور دے۔ رومبی حیثیت سره اذان اوریدونکی هر مسلمان باندِ لازم دی چه د مانځه دپاره تیارے اُوکړی او د جمع مونځ سره شریک شی۔ د دوئیم حیثیت سره هر مسلمان له پکار دی چه د اذان اوریدو په وخت د دے ایمانی دعوت د هر جُز او د دے اسمانی منشور د هرے دفعے په خپل زړهٔ اوژبے سره تصدیق اُوکړی۔ دا رنګے ټوله اسلامی آبادی د هر اذان په وخت کښ د دے ایمانی عهد و میثاق تازه والے اُوکړی ځکه خو په دے جواب باندِ د جنت زیرے ورکړے شوید ے۔ (معارف القرآن ج۳ ص۱۶۵ مختصرًا)

## دا اذان نه پس دُعا او د هغے فضیلت

د حضرت جابر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے

(۱۸۳) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ حِيْنَ يَسْمَعُ النِّدَاءَ

رَسُول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه څوک د اذان په وخت کښ دا دُعا اُوکړی

اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَ ﷺ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَ ﷺ الَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ حَلَّتْ لَهٗ شَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ۔ (بخاری ج۱ ص۸۶ باب الدعاء عند النداء وسنن اربعہ)

"اے الله! د دے کامل اعلان او د دے قائم مونځ ربه! محمد ﷺ ته وسیله او فضیلت ورکړے او ده ته مقام محمود ورکړے چه دکوم تا سو وعده کړیده" د قیامت په ورځ د ده شفاعت په ما باندې ثابت شو۔

د بیهقی په یو روایت کښ د دے دُعا په اخر کښ " اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ " زیادت هم د ے۔ (فتح الباری شرح بخاری ج۲ ص۷۷، فتح القدیر شرح الهدایه ج۱ ص۲۱۸)

## د اِقامت اُوولس کلمات

دحضرت اَبُو مَحذوره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث د ے:

(۱۸۴) اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَلَّمَهُ الْاِقَامَةَ سَبْعَ عَشَرَ كَلِمَةً۔

رَسُوْلُ الله ﷺ حضرت اَبُو مَحذوره رضی اللہ عنہ ته د اِقامت اُوولس کلمے ښودلے وے

مخکښ هم په د ے حدیث کښ د د ے کلماتو تفصیل راسے د ے:

اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔

(ابوداؤد ج۱ ص۸۰ باب کیف الاذان، ابن ماجه)

د دے سند صحیح د ے۔ محدث اِبنِ دَقِیقُ الْعِیْد شافعیؒ په خپل کتاب " اَلْاِمَامُ " کښ فرمائیلی دی:

وَهٰذَا السَّنَدُ عَلٰى شَرْطِ الصَّحِيْحِ۔ (نصب الرایہ ج۱ ص۲۶۸) چه داسند د صحیح په شرط برابر دے او معتبر دے۔

(۱۸۵) د حضرت اَبُو محذوره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم هغه ته د اِقامت اوولسو کلماتو تعلیم ورکړے وو۔ وَالْاِقَامَةَ سَبْعَ عَشَرَةَ كَلِمَةً۔ (ترمذی ج۱ ص۲۷ باب ماجاء فی الترجیع فے الاذان، نسائی، دارمی)

دا حدیث صحیح دے۔ د دے حدیث باره کښ امام ترمذی فرمائی: "هٰذَا حَدِیْثٌ حَسَنٌ صَحِیْحٌ۔" (ترمذی ج۱ ص۲۷)

حافظ ابنِ حجر شافعیؒ په الدرایه ج۱ ص۱۱۴ کښ لیکلی دی چه دا حدیث محدث ابنِ خزیمه او محدث ابن حبان صحیح تسلیم کړے او منلے دے۔

(۱۸۶) حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه په خوب کښ د فرښتے نه آذان او اقامت آوریدلے وو۔ او رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته صحیح ویلی وو او تائید ئے کړے وو۔ د دے مرفوع حدیث بعضِ طریقو کښ دا الفاظ دی۔

كَانَ اَذَانُهُ مَثْنٰى مَثْنٰى وَاَقَامَ مَثْنٰى مَثْنٰى۔ چه آذان دوه دوه کلمے وایه او اقامت هم دوه دوه کلمے وایه۔

(مصنف ابن ابی شیبة ج۱ ص۲۰۶، سنن بیهقی ص۴۲۰ باب ماروی فی تثنیة الاذان والاقامة)

د دے سند صحیح دے۔ محدث ابن دقیق العید شافعیؒ "الامام" (نوم کتاب) کښ فرمائی:

وَهٰذَا رِجَالُ الصَّحِیْحِ۔ چه د دے راوی د صحیح راوی دے۔

علامه ابن حزم ظاهری پخپل مشهور کتاب "المحلی ج۱ ص۱۵۵" کښ لیکی دی:

وَهٰذَا اِسْنَادٌ فِیْ غَایَةِ الصِّحَّةِ۔ (نصب الرایه ج۱ ص۲۶۷) چه دا سند بیخی صحیح دے۔

٭ ٭ ٭ ٭

(۱۸۷) د حضرت عبد الله بن زید رضی اللہ عنہ په مرفوع حدیث کښ د اذان ذکر شته دے۔ د هغې نه پس لیکی:

ثُمَّ قَامَ فَقَالَ مِثْلَهَا إِلَّا أَنَّهُ زَادَ بَعْدَ مَا قَالَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ الخ

یعنی فرښتے د اذان د کلما تو برابر د اقامت کلمات اُووئیل لیکن د حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ نه پس ئے د قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ زیادت اُوکړو.

(ابو داؤد صـ۸۲ ج۱ باب کیف الاذان و مسند احمد)

(۱۸۸) د حضرت عبد الله بن زید انصاری رضی اللہ عنہ دا پاس د فرښتے والا حدیث په یوبل سند سره دا سے روایت شویدے:

إِنَّهُ رَأَى الْأَذَانَ مَثْنٰى مَثْنٰى وَالْإِقَامَةَ مَثْنٰى مَثْنٰى قَالَ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ عَلِّمْهُنَّ بِلَالًا۔

(الخلافیات للامام بیهقیؒ)

عبد الله بن زید رضی اللہ عنہ په خوب کښ د اذان کلمات دوه دوه ځل او د اقامت کلمات دوه دوه ځل واوریدل۔ حضرت عبد الله وائی چه ځه د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم په خدمت کښ حاضر شوم او دا دے واقعے خبر م ورکړو۔ نو نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمائیل چه حضرت بلال رضی اللہ عنہ ته دا دے کلما تو تعلیم ورکړه۔"

دا دے سند صحیح دے۔ حضرت حافظ ابن حجر شافعیؒ په الدرایه صـ۱۱۵ ج۱ کښ فرمائیلی دی: "إِسْنَادُهُ صَحِيحٌ۔"

(۱۸۹) حضرت اسودؒ تابعی فرمائیلی دی:

إِنَّ بِلَالًا كَانَ يُثَنِّي الْأَذَانَ وَيُثَنِّي الْإِقَامَةَ۔

حضرت بلال رضی اللہ عنہ به د اذان او اقامت کلمات دوه دوه ځل وئیل۔

(مسند عبد الرزاق، دار قطنی صـ۲۴۲ ج۱، طحاوی صـ۸۰ ج۱)

دا دے سند صحیح دے۔ (آثار السنن صـ۷۶ طبع ملتان)

(۱۹۰) حضرت ابُو جُحَیفه رضی الله عنه فرما ئیلی دی:

إِنَّ بِلَالًا رضی الله عنه يُؤَذِّنُ لِلنَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم مَثْنٰى مَثْنٰى وَيُقِيمُ مَثْنٰى مَثْنٰى۔

حضرت بلال رضی الله عنه به د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دپاره د اذان (کلمات) دوه دوه ځله ویٔل او د اقامت (کلمات) به ئې دوه دوه ځله ویٔل۔

(دارقطنی ج۱ ص۲۴۲، طبرانی بسندلین، آثار السنن ص۶۷)

(۱۹۱) حضرت عبد العزیز رحمه الله فرما ئیلی دی:

سَمِعْتُ أَبَا مَحْذُورَةَ يُؤَذِّنُ مَثْنٰى مَثْنٰى وَيُقِيمُ مَثْنٰى مَثْنٰى۔

یعنی ابو محذوره رضی الله عنه اذان دوه دوه ځل او اِقامت دوه دوه ځل اُو ویٔل۔

(طحاوی ج۱ ص۸۱ بسند حسن، آثار السنن ص۶۷)

(۱۹۲) حضرت سوید رحمه الله فرما ئیلی دی:

سَمِعْتُ بِلَالًا يُؤَذِّنُ مَثْنٰى وَيُقِيمُ مَثْنٰى۔

یعنی حضرت بلال رضی الله عنه اذان دوه دوه ځل او اقامت دوه دوه ځل ویٔیل۔

(طحاوی ج۱ ص۸۱ بسند حسن، آثار السنن ص۶۷)

(۱۹۳) د حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه باره کښې حدیث دے:

يُثَنِّي الْإِقَامَةَ۔

حضرت سلمه رضی الله عنه به اقامت دوه دوه ځل ویٔلو۔

(دارقطنی ج۱ ص۲۴۱ بسند صحیح۔ آثار السنن ص۶۸)

(۱۹۴) حضرت ابراهیم رحمه الله فرما ئیلی دی:

كَانَ ثَوْبَانُ رضی الله عنه يُؤَذِّنُ مَثْنٰى وَيُقِيمُ مَثْنٰى۔

حضرت ثوبان به اذان دوه دوه ځل او اقامت دوه دوه ځل ویٔیلو۔

(طحاوی ج۱ ص۸۱ بسند مرسل، آثار السنن ص۶۸)

**فائده:-** بعضِ صحیح احادیثو کښې د یو ځل اقامت ذکر دے۔ یعنی د اِقامت کلمات یو یو ځل اُو ئیلے شي۔ (صحاح سته)

بعضِ محققینو علماءِ کرام و دا پاس ذکر شوے دوه حئل اقامت والا متواتر احادیثو په رنړا کښ دا توجیه کړیده چه د اِقامت یو ځل ویئل په جواز باندِ حمل کړیدے او دوه ځل اقامت والا... احادیث په افضلیت او بهتروالی باندِ حمل کړیدی۔ خاص کر د مسجدِ نبوی ﷺ د مئوذنینو سردار حضرت بلال رضی اللہ عنہ تر ژونده پورے په دوه ځل اقامت باندِ عمل کول د افضلیت دپاره واضحه دلیل دے۔
(فتح الملہم ج۲ ص۲۳، شرح صحیح مسلم۔)

## د اِقامت جواب

د آذان جواب پشان د اقامت جواب هم سُنت دے او په اقامت کښ کلمات دوه ځل ویئل پکار دی لیکن د قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃُ په جواب کښ: اَقَامَهَا اللّٰهُ وَاَدَامَهَا ویئل پکار دی۔

(۱۰۵) یو مرفوع حدیث دے:

اِنَّ بِلَالًا اَخَذَ فِی الْاِقَامَةِ فَلَمَّا اَنْ قَالَ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَقَامَهَا اللّٰهُ وَاَدَامَهَا وَقَالَ فِیْ سَائِرِ الْاِقَامَةِ كَنَحْوِ حَدِيْثِ عُمَرَ فِي الْاَذَانِ۔ (ابوداؤد ج۱ ص۹۵، مشکوٰۃ ص۶۶ باب فضل الاذان)

حضرت بلال رضی اللہ عنہ اقامت شروع کړو۔ کله چه ئے: قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃُ اُووئیل نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په جواب کښ اُوفرمائیل، اَقَامَهَا اللّٰهُ وَاَدَامَهَا (الله تعالٰی دِ دا قائم او دا ئم لری او دباقی اقامت په جواب کښ نبی علیه السلام هم هغه شان اُووئیل څنګه چه ئے د آذان په جواب کښ ویئلی وُو۔ د حضرت عمر رضی اللہ عنہ په حدیث کښ تیر شو۔

÷ ÷ ÷

÷ ÷ ÷

نوټ:۔ د حضرت عمر رضی اللہ عنہ د احدیث په نمبر ۱۸۲ باندِ تیر شوید ے۔

## د مونځ کښ د بدن، کپړې او ځائې پاک وی

د الله پاک ارشاد دے:

(۱۹۶) وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ۝ (المدثر ۴) او خپلې جامې پاکې ساته۔

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۱۹۷) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلٰوةٌ بِغَيْرِ طُهُوْرٍ۔ (مسلم ج۱ ص۱۱۹، مشکوٰة ص۳۸) د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ذ پاکوالی نه بغیر مونځ قبول نهٔ دے۔

**فائده:-** د اودس، غسل او د طهارت بیان څهٔ نه څهٔ تفصیل سره دے کتاب په اول کښ ذکر شویدے۔

## په مونځ کښ پټول د عورت فرض دی

د الله تعالی ارشاد دے:

(۱۹۸) خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ۔ (الاعراف ۳۱) جمات ته په هر تللو کښ خپلې جامې اچوه۔

(۱۹۹) د حضرت عائشې رضی الله عنها مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلٰوةُ حَائِضٍ اِلَّا بِخِمَارٍ۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د بالغې ښځې مونځ بغیر د ټکری نه قبول نهٔ دے۔

(ابو داؤد ج۱ ص۱۰، ترمذی، مشکوٰة ص۷۳، مستدرک حاکم، صحیح ابن خزیمه)

امام ترمذی دے حدیث ته حسن وئیلی دی۔ امام حاکم ورته صحیح وئیلی دی۔ (فتح القدیر ج۱ ص۲۲۴ شرح هدایه)

## قبلې ته مخ کول فرض دی

د الله تعالی ارشاد دے:

(۲۰۰) فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ پس تاسو (په مانځه کښ) خپل مخ

الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۰ (البقرہ ۱۴۴) — مسجدِ حرام تہ واړوئ۔

(۲۰۱) وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ۰ (البقرہ ۱۴۴) — او کوم ځائے کښې چہ یئ خپل مخ (مسجدِ حرام) تہ واړوئ۔

(۲۰۲) وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۰ (البقرہ ۱۴۹) — او تاسو چہ چرتہ هم (پہ سفر) ځئ نو (مونځ کښې) خپل مخ مسجدِ حرام طرفتہ واړوئ۔

د قرآن مجید د دوئیمے سیپارے پہ ابتداء کښې مسجدِ حرام او کعبے شریفے طرفتہ مخ کولو حکم پنځه ځل شوے دے۔ دا تاکید بار بار ځکہ فرمائیلے دے چہ پہ سفر او حضر کښې د دے ډیرہ پابندی اوشی۔

**نوټ:-** پہ ریل کاړی، د اوبو جہاز او هوائی جہاز کښې هم د مونځ د صحیح کیدلو د پارہ قبلے تہ مخ کول فرض دی۔ او چہ فرض پاتے شی نو مونځ نہ صحیح کیږی۔ پہ سفر کښې بعضِ مسلمانان روښرہ د ناپوهتیا پہ وجہ پہ دے مسئلہ کښې غلطی کوی ځکہ ئے د لتہ خلقو تہ خبردارے ورکړیدے۔

(۲۰۳) د حضرت ابوهریرہ رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قُمْتَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاَسْبِغِ الْوُضُوْءَ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ۰ (بخاری ۲/۹۲۲، مشکوۃ ص ۷۵، مسلم ۱/۱۷۰) — نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم یو سړی تہ د مونځ تعلیم ورکولو او وے فرمائیل چہ کلہ تہ مونځ تہ اودریږے نو پورہ مکمل اودس اوکړہ بیا قبلے تہ مخ کړہ او تکبیر اووایہ۔

## د مونځ نیت فرض دے

د حضرت عمر فاروق بن الخطاب رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

(۲۰۴) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ — نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چہ د ټولو

اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّیَّاتِ۔ اعمالو دار و مدار په نیتونو باندې دے۔
(بخاری ج۱ ص۲ وبقیه صحاح سته، مشکوٰة ص۱)

نیت د زړهٔ د ارادے نُوم دے۔ د زړهٔ نه چه پوهه شی او سوچ اُوکړی (مثلاً) د ماسپخین مونځ کوم۔ په ژبه سره الفاظ ویل ضروری نهٔ دی خو د زړهٔ نیت حاضرولو د پاره په ژبه نیت ویل ښهٔ دی۔ (فتح القدیر ج۱ ص۲۳۲، فتاوی عالمگیری ج۱ ص۶۵)

## په مونځ کښې اُودریدل فرض دی

د الله پاک ارشاد مبارک دے:

(۲۰۵) قُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِیْنَ ○ (البقره پ۲ ع۲۳۸)

او (په مانځه کښې) د الله پاک په دربار کښې په عاجزئ سره اُودریږئ۔

(۲۰۶) حضرت عمران بن حُصَین رضی الله عنه فرمائیلی دی:

کَانَتْ بِیْ بَوَاسِیْرُ فَسَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلٰوةِ فَقَالَ صَلِّ قَائِمًا فَاِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا۔ (بخاری ج۱ ص۱۵۰، ابوداؤد، ترمذی، نسائی، ابن ماجه)

چه ما ته د بواسیرو تکلیف وو نو ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د مونځ باره کښې تپوس اُوکړو چه مونځ څنګه کوم) نبی علیه السلام اُوفرمائیل چه په ولاړه کوه او که په ولاړه مونځ نشے کولے نو په ناستے مونځ کوه۔

**نوټ**:۔ ریل ګاړی او جهاز وغیره کښې هم فرض مونځ کښې اُودریدل فرض دی۔ بغیر د مجبورئ نه فرض مونځ په ناسته صحیح نهٔ دے خو نفل مونځ بغیر د عُذر نه په ناسته جائز دے۔

## تکبیرِ تحریمه فرض دے

د الله تبارک وتعالیٰ ارشاد دے:

(۲۰۷) وَرَبَّکَ فَکَبِّرْ (المدثر پ۲۹)

او د خپل رب لوئی بیان کړه۔

(۲۰۸) وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ۝ (الاعلیٰ ۱۵) — او د خپل رب نوم لئے واخست او مونځ لئے اُوکړو۔

(۲۰۹) د حضرت علی رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .... تَحْرِيْمُهَا التَّكْبِيْرُ۔ — رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه دمونځ تحریمه په تکبیر دے۔

(ابوداؤد، ترمذی صـ۳ جلد اول، دارمی)

## دمونځ طریقه

مونځګذار به قبلے ته مخ کړی او تکبیر تحریمه به اُووائی:

(۲۱۰) د حضرت عائشے رضی اللہ عنہا مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَفْتِحُ الصَّلٰوةَ بِالتَّكْبِيْرِ۔ — رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم به تکبیر سره مونځ شروع کړلو۔

(مسلم صـ۱۹۴ جلد اول، مشکوٰة صـ۷۵)

(۲۱۱) د حضرت ابوحمید رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلٰوةِ اِسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَقَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ ۔ — رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم چه کله مانځه ته اُودریدو نو قبلے ته به ئے مخ کړو او خپل دواړه لاسونه به ئے اُوچت کړل او اَللّٰهُ اَكْبَرُ به ئے اُووئیلو۔

(ابن ماجه صـ۵۸ سند حسن، آثار السنن صـ۸۱)

## په تکبیر تحریمه کښې د غوږونو برابر لاسونه اُوچتول

د حضرت مالک بن الحویرث رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

(۲۱۲) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ — رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم چه کله تکبیر کړو

إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ ط (مسلم ج۱ ص۱۶۸، مشکوٰة ص۷۵)

نو د واړه لاسونه به یٔے اوچتول تر دے پورے چه د واړو غوږونو سره به یٔے برابر کړهٔ۔

(۲۱۳) د حضرت مالک بن الحُوَیْرِث رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ (مسلم ج۱ ص۱۶۸، مشکوٰة ص۷۵)

تو دے چه لاسونه به یٔے د خپلو غوږونو د پاس سَرونو پورے برابر وُل۔

(۲۱۴) د حضرت ابنِ عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم به چه کله مونځ شروع کړلو نو خپل دواړه لاسونه به یٔے د دواړو اوږو برابر اوچتول۔

(بخاری ج۱ ص۱۰۲، مسلم ج۱ ص۱۶۸، مشکوٰة ص۷۵)

**فائده:** امام شافعی رحمة الله علیه د دے مختلف احادیثو کښ داسے تطبیق کړیدے چه د لاس تلی دِ د اوږو برابر وی او ګټے (غټے) ګوتے دِ دَ غوږونو د پوسکو برابر وی او نورے ګوتے دِ دَ غوږ پاس سَرونو سره برابر وی۔ (نووی شرح مسلم ج۱ ص۱۶۸)

علمائے احناف رحمهم الله هم دا تطبیق خوښ کړیدے۔ علامه قاری رحمه الله فرمائیلی دی:

هُوَ جَمْعٌ حَسَنٌ۔ — چه دا ډیر ښهٔ تطبیق دے۔

(مرقات شرح مشکوٰة ج۲ ص۲۵۴، بذل المجهود ج۲ شرح ابوداؤد)

## ښځه به سینے پورے لاس اوچتوی

(۲۱۵) د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا صَلَّیْتَ فَاجْعَلْ یَدَیْكَ حَذْوَ اُذُنَیْكَ وَالْمَرْأَةُ تَجْعَلُ یَدَیْهَا حِذَاءَ ثَدْیَیْهَا۔
(طبرانی، کنز العمال ص۱۷۵ ج۴)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه ته مونځ کوے نوخپل دواړه لاسونه غوږونو سره برابر کړه او ښځه دِ لاسونه خپلو سینو سره برابر کړی۔

علامه سیوطی رحمة الله علیه هم په "التنویر" کښې دطبرانی په حوالے سره دا حدیث ذکر کړیدے۔ (اوجز المسالک شرح موطا امام مالک ص۲۰۲ ج۱)

(۲۱۶) حضرت اُمّ درداء رضی اللہ عنہا، حضرت عطاء تابعیؒ، امام زهریؒ، حضرت حمادؒ وغیره نه نقل شویدی:

اِنَّ الْمَرْءَةَ تَرْفَعُ یَدَیْهَا اِلٰی ثَدْیَیْهَا۔

بیشکه ښځه به خپل دواړه لاسونه تر سینے برابر اُوچتوی۔

## په ولاړه ښې لاس دګس لاس دپاسه ایخودل

(۲۱۷) دحضرت وائل بن حجر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

اِنَّهٗ رَاَی النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ یَدَیْهِ حِیْنَ دَخَلَ فِی الصَّلٰوةِ وَكَبَّرَ ثُمَّ وَضَعَ الْیُمْنٰی عَلَی الْیُسْرٰی۔ (مسلم ص۱۷۳ ج۱، مشکوٰة ص۷۵)

حضرت وائل رضی اللہ عنہ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم لره لیدلے وُو چه کله ئے مونځ شروع کولو نو لاسونه ئے اُوچت کړل او تکبیر ئے اُووئیلو بیا ئے ښے لاس ګس لاس دپاسه کیخودو۔

(۲۱۸) دحضرت وائل بن حجر رضی اللہ عنہ یو مرفوع حدیث دے:

رَاَیْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ قَآئِمًا فِی الصَّلٰوةِ قَبَضَ بِیَمِیْنِهٖ عَلٰی شِمَالِهٖ۔ (نسائی ص۱۴۱ ج۱، ابن ماجه)

حضرت وائل رضی اللہ عنہ فرمائی چه ما رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم اُولیدلے چه کله به مانځه ته اُودریدو نو خپل ګس لاس به ئے په ښی لاس سره اُونیولو۔

(۲۱۹) د حضرت هُلب رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَؤُمُّنَا فَيَأْخُذُ شِمَالَهٗ بِيَمِيْنِهٖ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم څهونږ امام وو نو خپل ښی لاس سره ئے خپل ګس لاس نیولے وو۔

(ترمذی ج۱ ص۳۴، ابن ماجه، مشکوٰة ص۷۵) وقال الترمذی حدیث حسنٌ۔

(۲۲۰) حضرت سهل رضی الله عنه فرمائیلی دی:

كَانَ النَّاسُ يُؤْمَرُوْنَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى ذِرَاعِهِ الْيُسْرٰى فِي الصَّلٰوةِ۔

خلقوته د دے خبرے حکم شوے وُوچه مونځ کښ به سړے خپل ښے لاس په ګس لاس باندِ ایږدی۔

(بخاری ج۱ ص۱۰۲ باب وضع الیمنیٰ علی الیسریٰ فی الصلوٰة، موطا امام مالک رح)

(۲۲۱) د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى كَفِّهِ الْيُسْرٰى وَالرُّسْغِ وَالسَّاعِدِ۔

بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل ښے لاس په ګس تلی او مروند او لیچے باندِ کیخودو۔

(نسائی ج۱ ص۱۴۱، ابوداؤد، مسند احمد)

**فائده**:- په بعض ضعیف او موقوف روایاتو کښ اِرْسَالُ الْيَدَيْنِ (لاسونه زوړند وَل) ذکر هم راغلے دے۔ د مُحَقِّقِینو په نزد دا پاس ذکر شوی مرفوع احادیثو مقابله کښ حُجت نۀ دے۔ (السعایه ج۲ ص۱۵۶)

## د نامه نه لاندے لاس تړل

د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۲۲۲) قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَمِيْنَهٗ عَلٰى شِمَالِهٖ فِي الصَّلٰوةِ تَحْتَ السُّرَّةِ۔

حضرت وائل بن حجر رض فرمائیلی دی چه ما نبی علیه الصلوٰة والسلام لیدلے وُوچه خپل ښے لاس ئے د ګس لاس دپاسه د نامه د لاندے ایخودی وُو۔

(مصنف ابن ابی شیبة ج۱ ص۳۹۰)

دده سند صحیح دے۔ (آثار السنن ص۹)

دا حدیث د مصنف ابن ابی شیبه په دیرو نسخو کښ شته دے۔ محدث قاسم بن قطلوبغا د احادیث الاختیار شرح المختار کښ فرمائیلی دی:

هٰذَا سَنَدٌ جَیِّدٌ چه دا سند ښه دے۔

محدث ابو الطیب المدنی رحمة الله علیه په شرح د ترمذی کښ لیکلی دی:

هٰذَا حَدِیْثٌ قَوِیٌّ مِنْ حَیْثُ السَّنَدِ۔ چه دا حدیث د سند په اعتبار قوی دے۔

شیخ محمد عابد السندهی المدنی طوالع الانوار شرح در مختار کښ فرمائیلی دی:

رِجَالُهٗ ثِقَاتٌ۔ چه دده حدیث راوی ثقه او قابل اعتماد دے العرض دے ائمه محدثینو دده حدیث توثیق کړیدے۔

(بذل المجهود شرح ابو داود ص۲۳ ج۲، تحفة الاحوذی شرح الترمذی ص۲۱۴ ج۱، آثار السنن ص۹)

دده په تائید او استشهاد په درجه کښ دا لاندینی روایات او آثار هم دی:

(۲۲۳) خلیفۂ راشد حضرت علی کرم الله وجهه فرمائیلی دی:

مِنْ سُنَّةِ الصَّلٰوةِ وَضْعُ الْیَمِیْنِ عَلَی الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ۔ د لمانځه نه لاندے ښے لاس په کس لاس باندے لاندے د نوم دمونځ سنت دی۔

(مسند امام احمد ص۱۱۰ ج۱، مصنف ابن ابی شیبة ص۳۹۱ ج۱، دارقطنی ص۲۸۶ ج۲، سنن بیهقی ص۳۱ ج۲)

(۲۲۴) حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمائیلی دی:

وَضْعُ الْکَفِّ عَلَی الْکَفِّ فِی په مونځ کښ د نامه نه لاندے لاس د لاس

الصَّلٰوۃِ تَحْتَ السُّرَّۃِ۔ لاس ایخودل پکار دی۔

(ابوداؤد بروایۃ الاعرابی)

علامہ علاؤالدین المارد ینی ابن الترکمانیؒ هم د محدث ابن حزم الظاهری په حوالے سره دا حدیث نقل کړیدے۔ اُوګوری (الجواهر النقی علی البیهقی ص۳۱ جلد۲ طبع مصر۔)

(۲۲۵) حضرت ابُومجلزؒ تابعیؒ فرمائیلی دی؛

یَضَعُ بَاطِنَ یَمِیْنِهٖ عَلٰی ظَاهِرِ کَفِّ شِمَالِهٖ وَیَجْعَلُهُمَا اَسْفَلَ مِنَ السُّرَّۃِ۔ (مصنف ابن ابی شیبه ج۱ ص۳۹۱)

مونځکښ اربه دخپل ښی لاس تلے دخپل ګس لاس دتلی په شا باندِ کیږدی او دواړه به دنامهٔ نه لاندے کیږدی۔

ددے سند جید دے۔ (الجواهر النقی علی البیهقی ج۲ ص۳۱) حافظ ابُوبکر مالکیؒ هم په التمهید کښ د ابُومجلز دا مسلک نقل کړیدے۔ (الجواهر النقی ج۲ ص۳۱)

(۲۲۶) حضرت ابراهیم نخعی تابعیؒ فرمائیلی دی؛

یَضَعُ یَمِیْنَهٗ عَلٰی شِمَالِهٖ فِی الصَّلٰوۃِ تَحْتَ السُّرَّۃِ۔

(مصنف ابن ابی شیبۃ ج۱ ص۳۹۰)

مونځګښ اردِ په مانځه کښ خپل ښے لاس دګس لاس دپاسه دنامهٔ د لاندے کیږدی۔

ددے سند حسن دے۔ (آثار السنن ص۹۱)

(۲۲۷) حضرت انس رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی:

ثَلَاثٌ مِنْ اَخْلَاقِ النُّبُوَّۃِ تَعْجِیْلُ الْاِفْطَارِ وَتَاخِیْرُ السُّحُوْرِ وَوَضْعُ الْیُمْنٰی عَلَی الْیُسْرٰی فِی الصَّلٰوۃِ تَحْتَ السُّرَّۃِ۔ (محلی ابن حزم تعلیقاً، الجواهر النقی ج۲ ص۳۲ علی البیهقی)

درے خبرے دنبوّت داخلاقو نه دی۔ یُو دا چه روژماتولو کښ جلتی کوّل، دویم پیشمنی کښ روستوالے کوّل۔ دریم په مانځه کښ ښے لاس په ګس لاس باندِ دنامهٔ نه لاندے ایخودل۔

**فائده:-** په بعض روایاتو کښې په ناٹه یا سینه باندِ لاس ایخودلو ذکر راغلے دے لیکن د محقق ثینو په نزد ، دے ټولو روایاتو کښې خبرے شته دے او ضعیف دی ۔ (اثار السنن ص۹۴ ـ ۸۸)

ع۲ :- په دے د ټولو عُلماؤ اتفاق دے چه ښځه به مانځه کښې په سینه باندِ لاسونه ایږدی ۔

علامه عبد الحیؒ لکهنوی رحمة الله علیه لیکلی دی :

وَاتَّفَقُوْا عَلٰى اَنَّ السُّنَّةَ لَهُنَّ وَضْعُ الْيَدَيْنِ عَلَى الصَّدْرِ لِاَنَّهُ اسْتَرُ لَهَا ۔ (السعایه شرح الوقایه ج۲ ص۱۵۶)

د ائمه اربعه اتفاق دے چه ښځے دپاره په سینه لاس ایخودل سنت دی ځکه چه دوی دپاره د ازیات د پردے باعث دے ۔

شیخ حلبیؒ المتوفی سنه ۹۵۶ھ هم په دے مسئله اتفاق او اجماع نقل کړیده ۔ (کبیری ص۳۰۱)

## سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ اخره پورے ویل

د الله تعالیٰ ارشاد دے :

(۲۲۸) وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ تَقُوْمُ ۔ (طور پ۲۷ ع۵) چه کله ته اُودریږے نو د خپل رب تسبیح او تحمید کوه ۔

ضحاکؒ تابعی د دے په تفسیر کښې فرمائیلی دی چه په مانځه کښې په ولاړه کښې دِ : سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ او وئیلے شی ۔ (مصنف ابن ابی شیبه ، ابن جریر ، ابن المنذر ، السعایه ج۲ ص۱۶۱ ، تفسیر در منثور ج۶ ص۱۲۰)

(۲۲۹) د حضرت ابُو سعید رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به شپه کښې مانځه

إِلَى الصَّلٰوةِ بِاللَّيْلِ كَبَّرَ ثُمَّ يَقُوْلُ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ۔

دپاره اودریدل نو د اَللّٰهُ اَكْبَرُ نه پس به ئے دا دعا وئیله: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ۔

(ابوداود ج۱ ص۱۱۹، ترمذی ج۱ ص۳۳، نسائی، ابن ماجه، مشکوٰة ص۱۰۸، مسند احمد)

دا حدیث سند قوی دے۔ محدث الهیثمی په الزوائد ج۲ ص۳۶۵ کښ لیکلی دی۔

رِجَالُ أَحْمَدَ ثِقَاتٌ دمسند احمد راوی ثقه او معتمد دی۔

امام حاکم رحمة الله علیه فرمائیلی دی: "صَحِیْحُ الْإِسْنَادِ۔" (نصب الرایه مع الحاشیه ج۱ ص۳۲۲) محدث طیبی شافعیؒ فرمائیلی دی: إِسْنَادُهٗ حَسَنٌ۔ (مرقاة شرح مشکوٰة ج۲ ص۲۷۸)

(۲۳۰) دحضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ كَبَّرَ ثُمَّ يَقُوْلُ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ۔

(دارقطنی وطبرانی)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به چه کله مونځ شروع کولو نو اَللّٰهُ اَكْبَرُ به ئے وئیلو، بیا به ئے دا دعا وئیله: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ۔ " خدایه ستا تسبیح وایم او ستا نوم مبارك دے او لوئے دے شان ستا او ستا نه بغیر څوك دعبادت لائق نشته۔"

دا سند قوی دے۔ (مغنی ابن قدامه حنبلیؒ ج۱ ص۵۱۸، دارقطنی ج۱ ص۱۱۳ نصب الرایه صفحه ۳۲۰ جلد اول۔)

(۲۳۱) دحضرت عائشه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے:

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ قَالَ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ (ترمذی ج۱ ص۳۴، ابوداؤد ج۱ ص۱۲۰، ابن ماجہ)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم چه به کله مونځ شروع کوٴلو نو دا دُعا به ئے وئیله: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ.

(۲۳۲) حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائیلی دی۔

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ قَالَ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ۔ (طبرانی، نصب الرایہ ج۱ ص۳۲۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله مونځ شروع کوٴلو نو دا دُعا به ئے وئیله: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ۔

دد ے مضمون مرفوع حدیث د حضرت جابر رضی الله عنه نه هم روایت شوی دے۔ (بیهقی)

(۲۳۳) حضرت عُمر رضی الله عنه به هم دا دُعا وئیله او کله به ئے دخلقو دتعلیم دپاره به ئے دا دُعا په زوره وئیله:

اِنَّ عُمَرَ رضی الله عنه كَانَ يَجْهَرُ بِهٰؤُلَآءِ الْكَلِمَاتِ يَقُوْلُ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ۔ (مسلم ج۱ ص۱۷۲ منقطعًا باب حجة من قال لايجهر بالبسملة، دار قطنی ج۱ ص۲۹۹، طحاوی)

حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه به په زوره دا کلمات وئیل: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ۔

دد ے سند صحیح دے۔ (آثار السنن ص۹۳)

(٢٣٤) حضرت عثمان رضی اللہ عنہ به هم دا دُعا وئیله : اَبُو وائل رح وائی :

كَانَ عُثْمَانُ رَضِیَ اللہُ عَنْهُ اِذَا اِفْتَتَحَ الصَّلٰوةَ يَقُوْلُ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰی جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ يُسْمِعُنَا ذٰلِكَ (دارقطنی ص٣٠٢ ج١)

حضرت عثمان رضی اللہ عنہ به چه كله مونځ شروع كولو نو مونږ ته به ئې آورول او دا دُعا به ئې وئیله : سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰی جَدُّكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ ۔

ددے سند حسن دے ۔ (آثار السنن ص٩٣)

(٢٣٥) حضرت اَبُوبكر صدیق رضی اللہ عنہ به هم دا دُعا وئیله ۔ (السعایه ص١٦٦ ج٢، سنن سعید بن منصور، المنتقی لابن تیمیه)

(٢٣٦) حضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ به هم دا دُعا وئیله ۔ (ابن المنذر المنتقی لابن تیمیه، البیهقی كذا فی السعایه ص١٦٦ ج٢)

**فائده :-** بعضِ صحیح احادیثو كښې ځنې نورے دُعا گانے هم روایت شوی دی ۔ لكه : اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ فَطَرَ الخ ۔

لیكن دخلفاء راشدینو عمل خاصكر دخلقو تعلیم د پاره د حضرت عمر رض او حضرت عثمان رض دصحابو رض په وړاندے دا په زوره وئیل ددے خبرے ښكاره دلیل دے چه نبی كریم صلی اللہ علیہ وسلم به اكثر عمل یا آخری عمل سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وئیل وُو ۔ نو دا دُعا غوره او بهتره ده ۔ (المنتقی لابن تیمیه، فتح القدیر لابن الهمام رح ص٢٥٣ ج١)

**تعوذ** امام او ځانله مونځ كونكے چه قرأت وائی نو ځكه به د ثناء نه پس د قرأت نه مخكښې : اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ ط وائی ۔

(٢٣٧) د الله پاك ارشاد دے :

فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (النحل ۱۶/۹۸)

چه کله تاسو قران مجید لولئ نو شیطان مردود نه د الله پنا غواړئ۔

(۲۳۸) د حضرت ابُوسعید خُدری رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ ...... ثُمَّ يَقُوْلُ أَعُوْذُ بِاللّٰهِ السَّمِيْعِ الْعَلِيْمِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (ابوداؤد ص۱۲۰/۱، ترمذی مشکوٰة ص۱۰۶، نسائی ابن ماجه مسند احمد بیهقی)

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله به د شپے مونځ ته اودریدو نو الله اکبر به ئے وئیل ..... بیا به ئے أَعُوْذُ بِاللّٰهِ السَّمِيْعِ الْعَلِيْمِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ وئیل

په مُسند احمد کښ أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ دے (السعایه ص۱۶۶/۲ج)

(۲۳۹) د حضرت جُبَیر بن مُطعِم رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ دَخَلَ فِي الصَّلٰوةِ قَالَ .... اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (ابن ماجه ص۵۸ باب الاستعاذه فی الصلوٰة، مشکوٰة ص۷۷)

حضرت جُبیر بن مُطعم رضی اللہ عنہ فرمائی ما رسول الله صلی الله علیه وسلم اولید چه کله ئے مونځ شروع کړلو نو وئیل به ئے اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ

**فائده:-** د تعوذ مختلف الفاظ په احادیثو کښ روایت شو ټول صحیح دی۔

## تسمیه

حضرت نُعَیم فرمائیلی دی:

(۲۴۰) صَلَّيْتُ خَلْفَ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضی اللہ عنہ

حضرت نُعَیم تابعی فرمائیلی دی چه

فَقَرَأَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ثُمَّ قَرَأَ بِأُمِّ الْقُرْاٰنِ فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنِّيْ لَاَشْبَهُكُمْ صَلٰوةً بِرَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ ۔ (نسائی جلد ۱ باب قراءة بسم اللہ الرحمن الرحیم)

حضرت ابوهریره رضی الله عنه پسے مونځ کولو نو هغه بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اُووئیله بیا ئے فاتحه اُولوستله چه کله ئے سلام اُوګرځولو نو وے وئیل چه په هغه ذات م دِ قسم وی چه دهغه په قدرت کښ ځما ساه ده تاسو ټولو نه زیات ځما مونځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ سره مُشابه دے۔

دا حدیث صحیح ابن خزیمه، صحیح ابن حبان، مستدرک حاکم، بیهقی، دارقطنی او طحاوی کښ هم شته۔ محدث حاکم رحمة الله علیه فرما یئلی دی:

صَحِيْحٌ عَلٰی شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ ۔ دبخاری او مسلم په شرط صحیح دے۔

(نصب الرایه ص ۳۲۴ جلد ۱)

(۲۳۱) دحضرت علی رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ فِيْ صَلٰوتِهٖ ۔ (دارقطنی ج ۱ ص ۳۰۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل مانځه کښ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وئیلو۔

وَقَالَ الدَّارَقُطْنِيُّ اِسْنَادُهٗ لَا بَأْسَ بِهٖ

**فائده:-** دتسمیه بِالْاِخْفَاء احادیث چه دهغې تفصیل مخکښ راغی هغه هم د بِسْمِ اللّٰهِ وئیلو دلیل دے۔

## تعوذ او تسمیه پټ وئیل

دحضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۲۳۲) اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ... نبی کریم صلی الله علیه وسلم او حضرت ابو

اَبَابَکْرٍ رض وَعُمَرَ رض کَانُوْا يَفْتَتِحُوْنَ الصَّلٰوةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ (بخاری ص۱۰۳ مشکوٰة ص۷۹، باب مايقرأ بعد التکبير)

حضرت عمرؓ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (سورة فاتحه نه مونځ شروع کړلو.

فوائد :- تعوذ او تسميه په مانځه کښې وئيل د پاسنو احاديثو نه ثابت شويدی- دد ے مطلب دا د ے چه تعوذ او تسميه به ئے په زوره نۀ وئيلو بلکه په رو به ئے وئيلو- هاں په جهری مونځونو کښې به فاتحه په زوره لوستله-

(۲۴۳) د حضرت انس رضی الله عنه مرفوع حديث د ے :

قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبِيْ بَکْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ فَلَمْ اَسْمَعْ اَحَدًا مِنْهُمْ يَقْرَأُ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط (بخاری ص۱۰۳ مسلم ص۱۷۲)

حضرت انس رضی الله عنه فرمائيلی دی چه ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم او حضرت ابوبکر او حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهم پسے مونځ کړيں ے ما د چا نه هم بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وئيل نۀ دی اوريدلی-

د حديث شريف مطلب دا د ے چه تسميه ئے په زوره نۀ وئيله بلکه په رو به ئے وئيله څنګه چه د لاندينی احاديثو نه معلوميږی

(۲۴۴) د حضرت انس رضی الله عنه نه د مسلم په دويم حديث کښې روايت د ے

فَکَانُوْا يَسْتَفْتِحُوْنَ الْقِرَاءَةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ لَا يَذْکُرُوْنَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط فِيْ اَوَّلِ قِرَاءَةٍ وَلَا فِيْ اٰخِرِهَا-

(مسلم ص۱۷۲)

نبی کريم صلی الله عليه وسلم او حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمرؓ او حضرت عثمانؓ د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ نه قرأت شروع کړلو بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ئے نۀ د قرأت په شروع کښې وئيله او نۀ په اخر کښې-

(۲۴۵) د حضرت انس رضی اللہ عنہ هم دا مرفوع حدیث نسائی، مسند احمد، صحیح ابن حبان او په دارقطنی کښ په دے الفاظو سره روایت شویدے:

فَكَانُوْا لَا يَجْهَرُوْنَ بِبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ۔ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم، حضرت ابو بکر رض، حضرت عمر رض او حضرت عثمان رض بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ په زوره نه لوستله۔

(۲۴۶) د حضرت انس رضی اللہ عنہ نه په نسائی ج۱ ص۱۴۴، ابن حبان او طحاوی په روایت کښ دی:

فَلَمْ اَسْمَعْ اَحَدًا مِّنْهُمْ يَجْهَرُ بِبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ۔ ما د نبی علیه السلام، حضرت ابو بکر رض، حضرت عمر رض او حضرت عثمان رض نه په دوی کښ د یو کس نه هم بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ په زوره وئیل نه دی آوریدلے۔

(۲۴۷) هم دا حدیث په طبرانی او حلیه ابو نعیم کښ په دے الفاظو سره روایت شوید ی:

وَكَانُوْا يُسِرُّوْنَ بِبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ۔ نبی علیه السلام، حضرت ابوبکر رض، حضرت عمر رض او حضرت عثمان رض به بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ په رو وئیله۔

د دے ټول احادیثو راویان ثقه دی (نصب الرایه ص۳۲۷ ج۱، ص۳۲۹ ج۱)

(۲۴۸) د حضرت عبد الله بن مغفل رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ سَمِعَنِيْ اَبِيْ وَاَنَا اَقُوْلُ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ فَقَالَ اَیْ بُنَیَّ اِيَّاكَ وَالْحَدَثَ حضرت عبد الله بن مغفل رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی چه ما پلار ما په زوره ... بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وئیل واوریدل

ل وَصَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم وَمَعَ اَبِىْ بَكْرٍ رض وَمَعَ عُمَرَ رض وَمَعَ عُثْمَانَ رض فَلَمْ اَسْمَعْ اَحَدًا مِنْهُمْ يَقُوْلُهَا۔

(ترمذی ج۱ ص۳۳ باب الجهر ببسم الله الرحمن الرحیم ط نسائی ج۱ ص۱۴۴ باب ترک الجهر ببسم الله الرحمن الرحیم ط ابن ماجه ص۵۹ طحاوی ص۱۱۹ جلد اول۔)

نو هغه اُووئیل، اے ځما ځویه! د بدعت نه ځان بچ کړه ---- او بیا یے اُووئیل چه ما نبی کریم صلی الله علیه وسلم او حضرت اَبُوبکر رض، حضرت عمر رض او حضرت عثمان رض سره مونځ کړیدے۔ ما په دے ټولو کښں هیڅوک په بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط وئیلو نهٔ دی اَوریدلی (یعنی په زوره وئیل مې ترے نهٔ دی اَوریدلی۔)

دا حدیث حسن دے۔ (ترمذی ج۱ ص۳۳، نصب الرایه ج۱ ص۳۳۲)

امام ترمذی رحمة الله علیه دا حدیث نقل کوی او لیکی:

حَدِيْثٌ حَسَنٌ وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ اَكْثَرِ اَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم مِنْهُمْ اَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ وَعَلِيٌّ وَغَيْرُهُمْ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِيْنَ وَبِهٖ يَقُوْلُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَابْنُ الْمُبَارَكِ وَاَحْمَدُ وَاِسْحٰقُ لَا يَرَوْنَ اَنْ يُّجْهَرَ بِبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط قَالُوْا وَيَقُوْلُهَا فِىْ نَفْسِهٖ۔

دا حدیث حسن دے۔ د صحابه کرامو رض او تابعینو نه د اکثر اَهلِ عِلم عمل په دے حدیث باندے دے۔ د دوی نه خُلفاءِ راشدین حضرت ابوبکر رض، حضرت عمر رض حضرت عثمان رض، حضرت علی رض او نور حضرات هم دی۔ سُفیان ثوری، عبدالله بن مبارك، امام احمد، اسحٰق بن راهُویَه هم د دے قائل دی۔ دا ټول حضرات د بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ په زوره د وئیلو قائل نهٔ وُو۔ او وائی چه مونځګذار د بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط په زړه کښں یعنی په سرّه وائی۔"

(۲۴۹) دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ يَسْتَفْتِحُ الصَّلٰوةَ بِالتَّكْبِيْرِ وَالْقِرَاءَةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ د تکبیر نه او قرائت د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ نه شروع کولو.

(مسلم ص۱۹۴/۱۲۰، بیهقی، مشکوٰة ص۷۵)

(۲۵۰،۲۵۱) حضرت ابُووائل رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

كَانَ عُمَرُ وَعَلِيٌّ لَا يَجْهَرَانِ بِبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَلَا بِالتَّعَوُّذِ وَلَا بِالتَّامِيْنِ.

حضرت عمرؓ او حضرت علیؓ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ او اَعُوْذُ بِاللهِ او امین په زوره نهٔ وئیلو. (طحاوی ص۱۲۰/۱۲)

(۲۵۲) عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّهٗ كَانَ يُخْفِيْ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَالْاِسْتِعَاذَةَ وَرَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ.

حضرت عبد الله بن مسعودؓ بِسْمِ اللهِ الرَّحِيْمِ او اَعُوْذُ بِالله او رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ په ارام سره وئیلو.

(مصنف ابن ابی شیبة ج۱ ص۴۱۲، زجاجة المصابیح ج۱ ص۲۵۵/۱۲۰)

**فائده:-** په بعض احادیثو کښ په مونځ کښ په زوره د بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وئیلو ذکر شته دے۔ محققینو دهغے ډیر جوابونه ورکړیدی:

۱:- دے پاسنو صحیح احادیثو سره هغه منسوخ دی۔

۲:- دسند په لحاظ سره د اِخفاء احادیث راجح دی۔

۳:- کله کله خلقو ته ښودلو دپاره چه په دے ځائ یا په دے وخت دا وئیلے شی نوبت کارونو کښ څهٔ لږ جهر کړے شی۔

لکه چه دحضرت ابُوقتاده رضی الله عنه مرفوع حدیث دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ماسپخین او ماز یګر مونځ کله کله یو ایت مونږ ته اورولو

دپارہ پہ زورہ وئیلو
وَيُسْمِعُنَا الْاٰيَةَ اَحْيَانًا ط
(بخاری ج۱ ص۱۰۵ باب اذا اسمع الامام الآیہ، مسلم ج۱ ص۱۸۵، باب القراءۃ فی الظہر)
حضرت عمر رضی اللہ عنہ د بصرے خلقو تہ د تعلیم او د اطلاع دپارہ
سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ الخ پہ زورہ وئیل ثابت دی۔(مسلم ج۱ ص۱۷۲
باب حجۃ من قال لایجہر بالبسملۃ)
همدارنګ داپاس ذکرشوے صحیح حدیث او د خلفاء راشدینو
مسلسل عمل نه د تسمیه جهر هم کله کله د خلقو د تعلیم دپاره وَو۔
(الناسخ والمنسوخ ص۵۵ للعلامۃ الحازمی، نصب الرایہ ص۳۶۱ جلد اول، معارف السنن
شرح ترمذی ص۳۶۹ جلد دوم)
**فائدہ:** د خپل دور بے مثله محدث جمال الدین زیلعی هغه
غلو یښت صفحو باندِ د بِسْمِ اللهِ د مسئلے د پرې په تفصیل او مُدلّل بحث
کړے دے۔ اوګورئ: (نصب الرایہ ج۱ ص۳۲۳ الی ص۳۶۳)

## اِمام صاحب به مانځه کښِ فاتحه وائی او ورسره سُورت هم به وائے کړی

د حضرت ابو قتادہ رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے

(۲۵۳) كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَيَيْنِ مِنَ الصَّلٰوةِ الظُّهْرِ بِفَاتِحَةِ الْكِتٰبِ وَسُوْرَتَيْنِ۔

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم د ماسپخین مونځ پہ اولو دوارو رکعتونو کښِ فاتحه او سورت لوستلو۔

(بخاری ج۱ ص۱۰۵ باب القراءۃ فی الظہر، مسلم ج۱ ص۱۸۵، مشکوۃ ص۷۹)

## ځانله مونځ کونکے به فاتحه او ورسره قرأت هم کوی

(۲۵۴) د حضرت رفاعه رضی الله عنه مرفوع حدیث دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو اعرابی ته د مونځ د تعلیم ورکولو دپاره اُوفرمائیل :-

إِذَا قُمْتَ فَتَوَجَّهْتَ إِلَى الْقِبْلَةِ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْاٰنِ وَبِمَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ تَقْرَأَ۔

(ابوداؤد ص ۱۳۱ ج ۱ باب من لایقیم صلبه فی الرکوع والسجود)

چه ته د مونځ دپاره اُودریږے او قبلے ته مخ کړے نو تکبیر اُووایه۔ بیا فاتحه اُووایه او د الله د خوښے مطابق قرآن اُووایه۔

دا حدیث په مسند احمد ج ۴ ص ۳۴۰ کښ په دے الفاظو سره روایت شویدے۔

إِذَا اسْتَقْبَلْتَ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْاٰنِ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا شِئْتَ ۔ (نصب الرایه ج ۱ ص ۳۶۷)

چه کله ته قبلے ته مخ کړے نو تکبیر اُووایه بیا فاتحه اُووایه بیا چه د خو مره خوښ وی، قرآن اُووایه۔

# مقتدی به د امام د قرأت په وخت کښ چپ وی

## د امام قرأت د مقتدی قرأت دے

(۲۵۵) د الله تعالیٰ ارشاد دے :

وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوا لَهٗ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝ (الاعراف پ ۹ ع ۲۴)

او چه کله قرآن لوستے شی نو هغے ته غوږ ایږدئ او چپ اُوسیږئ چه په تاسو رحم اُوشی۔

د دے ایت د شانِ نزول باره کښ مختلف اقوال دی، چه دا د خطبے او وعظ باره کښ نازل شوید ے، یا صرف مطلق د قرأت باره کښ نازل شوید ے یا د مونځ باره کښ نازل شوید ے۔ غوره قول دا دے چه دا د مانځه باره کښ نازل شوید ے ځنګه چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلی دی؛

اِنَّهَا نَزَلَتْ فِي الصَّلٰوةِ الْمَفْرُوْضَةِ   دا ایت دفرض مونځ باره کښې نازل شوے
(کتاب القرأة ص۳۷ ، امام بیهقیؒ)

دے لاندینی صحابوؓ او تابعینوؒ نه روایت شوید ے چه دا ایت دمانځه باره کښې نازل شوید ے ۔ حضرت ابن مسعود رضی الله (تفسیر ابن جریرؒ ص۱۰۳/۹) حضرت ابُو هُریرهؓ (دارقطنی) حضرت عبد الله بن مُغَفّلؓ (تفسیر ابن مردویه) حضرت مجاهدؒ (بیهقیؒ) حضرت ضحاکؒ، حضرت قَتَادَهؒ ، حضرت شعبیؒ ، حضرت سُدیؒ ، حضرت عبد الرَّحمٰن بن زیدؒ (تفسیر ابن کثیر ص۲۸۱/۲) ۔

علّامه ابنِ تیمیّه حنبلیؒ په خپله فتاوی ص۱۴۳/۱ کښې او علّامه ابن قُدامه حنبلیؒ په المغنی ص۲۵/۱ کښے امام احمد بن حنبلؒ دا قول نقل کړید ے :

اَجْمَعَ النَّاسُ عَلٰى اَنَّهَا نَزَلَتْ فِي الصَّلٰوةِ (نصب الرایه ص۱۷/۲ مع الحاشیه)   په دے د ټولو خلقو اجماع ده چه دا ایت دمانځه باره کښې نازل شوید ے

جمهورو مفسرینو هم دے قول ته ترجیح ورکړیده ۔ په تفسیر ابنِ جریر ، تفسیر ابن کثیر ، تفسیر رُوح المعانی ، تفسیر بیضاوی ، تفسیر کشاف ، تفسیر معالم التنزیل ، تفسیر آبُو السعود ، تفسیر خازن وغیره کښې هم دے قول ته راجح وئیلی دی چه دا ایت شان نزول مونځ دے ۔

ظاهره خبره ده چه په مانځه کښې امام صاحب په اجماع سره قرأت کوی ۔ د قرانِ پاك د دے نص قطعی نه دا خبره واضحه شوه چه کله امام قرأت وائی نو مقتدی باندِ لازم او واجب دی چه هغه دِ توجّه سره آوری او چُپ دِ وی : اِسْتَمِعُوْا او اَنْصِتُوْا

د امر صیغې دی او د علمائے اصولو د قول مطابق مطلق امر د وجوب دپاره راځي۔

د نبي کريم صلی اللہ علیہ وسلم د احاديثو او د صحابوؓ د آثارو نه دا مسئله واضحه بيان شوې چې په مانځه کښې امام دپاره فرض قرأت کول دي او د مقتدي فريضه چپ اوسيدل دي۔

(۲۵۶) د حضرت ابو موسیٰ اشعري رضي الله عنه مرفوع حديث دے چې نبي عليه السلام مونږ ته د مونځ تعليم راکړلو او وے فرمائيل:

لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا ........ وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا۔

چې په تاسو کښې دِ يو ستاسو امام جوړ شي۔ چې هغه تکبير وائي نو تاسو هم تکبير وايئ ...... او چې کله هغه قرآن وائي نو تاسو چپ اوسئ۔

(مسلم ج۱ ص۱۷۴ باب التشهد في الصلوٰة)

امام مسلم د دے حديث د صحت اظهار کوي بلکه په دے اصرار کوي او د وخت د مشانخو اجماع نقل کوي۔ د هغه الفاظ دا دي:

إِنَّمَا وَضَعْتُ هٰهُنَا مَا أَجْمَعُوا عَلَيْهِ۔

چې دلته (په صحيح مسلم کښې) صرف هغه احاديث درج کړي دي چې په هغې د مشانخو اجماع ده۔

(مسلم ج۱ ص۱۷۴ باب التشهد في الصلوٰة)

دا لاندېنی فقهاء هم د دے حديث د صحيح والي اقرار کوي۔

امام احمد بن حنبلؒ (مسند احمد ج۴ ص۳۹۶، تنوع العبادات ص۸۶ لابن تيميه) امام نسائيؒ (بحواله فتح الملهم ج۲ ص۲۲ وحاشيه نصب الرايه ج۲ ص۱۵) مفسر ابن جريرؒ (تفسير ابن جرير ج۹ ص۱۱۰) علامه ابن حزم ظاهري (محلّى ج۳ ص۲۱۰) علامه منذريؒ (بحواله عون المعبود ج۱ ص۲۳۵) مفسر ابن کثير شافعيؒ (تفسير ابن کثير ج۲ ص۲۸۰) د امام بخاريؒ استاذ امام اسحٰق بن راهويه

(بحواله تنوع العبادات ابن تیمیہؒ) حافظ ابن حجر شافعیؒ (فتح الباری ص۲۴۰ ج۲، شرح بخاری) علامه ابن قدامه حنبلیؒ (مغنی ص۶۰۵ ج۱) علامه ابن عبد البر مالکیؒ (بحواله نفحة العنبر ص۹۷) علامه ابن تیمیه حنبلیؒ (فتاوی ابن تیمیه ص۴۱۲ ج۲۲ و تنوع العبادات ص۹۶) علامه عینی حنفیؒ (عمدة القاری ص۵ ج۶ شرح بخاری) د اهلِ حدیثو رهنما علامه نواب صدیق حسن خان (بحواله عون المعبود ص۳۲۳ ج۱ شرح ابوداؤد) دے حدیث په صحت کښ دنور وحوالو دپاره فتح الملهم شرح مسلم ص۳۲ ج۲، معارف السنن شرح ترمذی ص۲۳۹ ج۲، نصب الرایه مع الحاشیه ص۱۵ ج۲، فصل الخطاب علامه انورشاه کشمیریؒ ص۲۷، احسن الکلام د محقق العصر علامه محمد سرفراز صفدر صاحب اوګورئ۔

(۲۵۷) د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوْا وَاِذَا قَرَأَ فَاَنْصِتُوْا (نسائی ص۱۰۶ ج۱، ابن ماجه ابوداؤد، مصنف ابن ابی شیبة مسند احمد)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه امام دے دپاره مقرر کوَلے شی چه د هغه تابعداری اوشی۔ نو چه کله هغه تکبیر اُووائی نو تاسو هم تکبیر ووایئ او چه کله هغه قران وائی نو تاسو چپ اوسئ۔

دا حدیث صحیح دے۔ امام مسلم فرمائی:

هُوَ عِنْدِیْ صَحِيْحٌ۔ (مسلم ص۱۷۴ ج۱)

د اهلِ حدیثو رهنما شیخ نواب صدیق حسن خان فرمائیلی دی:

وَهٰذَا الْحَدِيْثُ مِمَّا ثَبَتَ عِنْدَ اَهْلِ السُّنَنِ وَصَحَّحَهٗ جَمَاعَةٌ مِنَ الْاَئِمَّةِ۔ (دلیل الطالب ص۲۹۶)

دا حدیث د اهلِ سنن په نزد ثابت دے او د ائمه حدیث یو جماعت دیته صحیح ویلی دی۔

په اصل کښې د پاس صحیح احادیث د قرانِ پاک د پاسنی ایت: "وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا" تفسیر او تشریح ده. نو دے حقیقت طرف ته متوجه کولو د پاره امام نسائیؒ په تاویل د قول د الله تبارك وتعالیٰ: وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۵ عنوان او باب قائم کړو او د حضرت ابوهریره رضؓ پاسنے حدیث ئے ذکر کړو. (سنن نسائی ج۱ ص۱۴۶)

(۲۵۸) د حضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

اِنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قَرَأَ الْاِمَامُ فَاَنْصِتُوْا. (کتاب القراءة للبیهقی ص۹۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله امام قرأت کوی نو تاسو خاموش چپ اوسئ.

د دے راوی ثقه دی. (احسن الکلام ج۱ ص۱۳۴)

د دے مرفوع صحیح او صریح احادیثونه واضحه شوه چه د جماعت نمونځ کښې قرأت صرف د امام د پاره فرض دے، مقتدیانو د پاره چپ اوسیدل فرض دی. بیا په ایت او احادیثو کښې د آمر صیغه ده. (وَاَنْصِتُوْا) د علمائے اُصول د وینا مطابق مطلق آمر د وجوب د پاره راځی. د دے وجے نه چه امام قرآن لولی نو مقتدی باندې واجب او لازم دی چه هغه چپ اوسی.

(۲۵۹) د حضرت جابر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ لَهٗ اِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْاِمَامِ لَهٗ قِرَاءَةٌ.

نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د چا امام وی نو د امام قرأت د هغه قرأت دے.

دا حدیث تقریباً په شلو پینځه سند ونو سره روایت شوی دے

ددے اکثر سند ونه معلول دی. بعضِ سندُونه ئے صحیح قوی او معتبر دی

## اَوَّل قوی سَند

دِ امام بخاری اُستاذ حضرت امام احمد بن حَنبل رح دا یه خپل سَند سره روایت کرېدے.

(مسند امام احمد ج ۳ ص ۳۳۹). ددے سَند باره کښ حافظ شمس الدّین ابنِ قُدامه حنبلی رح لیکلی دی:

هٰذَا اِسْنَادٌ صَحِیْحٌ مُتَّصِلٌ — دا سَند صحیح او متصل دے او ددے ټول
رِجَالُهٗ کُلُّهُمْ ثِقَاتٌ. — راویان ثِقه او د اعتماد لائق دی.

(شرح مقنع للکبیر بر حاشیة المغنی ص ۱۱ ج ۲ طبع بیروت)

## دویم قوی سَند

دِ امام بخاری رح او اِمام مسلم اُستاذ مُحدّث اَبُو بکر بن ابی شیبه رح په خپل سَند سره دے لره په مُصنّف ابنِ ابی شَیبة ص ۳۷۷ ج ۲ کښ روایت کړېدے. ددے سَند باره کښ علّامه ماردینی رح الجواهر النقی علی البیهقی ج ۲ ص ۱۵۹ بانډِ لیکی:

هٰذَا اسْنَدٌ صَحِیْحٌ: دا اسَند صحیح دے.

## دریم قوی سَند

دِ امام بخاری رح او امام مسلم رح اُستاذ مُحدّث احمد بن مَنیع رح په خپل سند سره دے لره روایت کوی. (مسند احمد بن منیع). مُحقق اِبن الهمّام ددے سَند دَ ټولو راویانو توثیق نقل کوی او لیکلی ئے دی:

صَحِیْحٌ عَلٰی شَرْطِ مُسْلِمٍ. دا دِ مُسلم په شرط بانډِ صحیح دے.

(فتح القدیر شرح هدایه ص ۲۹۵ ج ۱)

## څلورم قوی سَند

د امام مُسلمِ رح اُستاذ عَبد بن حمید رح په خپل مُسند کښ دا حدیث روایت کړیدے چه د هغے باره کښ مُفسّر محمود آلوسی بَغدادی رح لیکلی دی:

عَلیٰ شَرْطِ مُسْلِمٍ ۔ (تفسیر روح المعانی پ۹ ص۱۵۰) دا سند دَ صحیح مسلم په شرط بانډې دے۔

## پنځم ۵ قوی سند

امام محمد رحؒ په خپل کتاب "مؤطا ص۹۸" کښې دا حدیث صحیح سَند سره روایت کړے دے۔

(فتح القدیر شرح ہدایہ ص۲۹۵/۱۲)

همدا رنګ دا حدیث په قوی سَند سره کتاب الآثار دَ امام محمدؒ کتاب الأثار دَ امام ابُویوسفؒ، کتاب القراءة للبیهقی، طحاوی وغیره کښې روایت شویدی۔

بهرحال حضرت جابر رضی الله عنه دا مذکوره مرفوع حدیث نه ثابت شوچه دِ امام قرأت مقتدی دپاره کافی دے۔ مقتدی دپاره جُدا قرأت کولو ضرورت نشته۔ په اصل کښې دے حدیث کښې یو مُسلّم اُصول او ضابطے طرفته راهنمائي شویده۔ هغه اُصول دادی که چرے یَو سړے دیَو کَس یا جماعت یا دَ یو اداره مشروی نو د مشرخبره ددغه کَس یا جماعت یا دَ اداره خبره ګڼلے شي چه چالړه دا نمائنده جوړکړے وی۔ د ټولے دُنیا عاقلان دا اُصول مَنی۔ د ټولے دُنیا سَفارتی او عدالتی او تجارتی نظام هم په دے اُصولو چلیږی او قرآن مجید هم دے اُصولوته اشاره کړیده۔

حضرت جبرئیل علیه السلام دَ الله تعالیٰ له طرفه د قاصد او نمائنده په حیثیت نبی کریم صلی الله علیه وسلم قرآن مجید وائی او رارسوی۔ ټول قرآنکریم تقریبًا په درویشت ۲۳ کاله کښې حضرت جبرئیل علیه السلام د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې اُولوستو او راوُښے رَسولو۔ نو الله تعالیٰ دخپل نمائنده حضرت جبرئیل علیه السلام دے ټول قرأت ته خپل قرأت اُووئیلو او دجمع مُتکلم صیغه کے ارشاد اُوفرمائیله:

فَاِذَا قَرَأْنٰهُ (القیامۃ ۱۸) چه کله مونږ د قران وایو.

خلاصه دا ده چه د قران مجید او د حدیث شریف نه ښودلی شوی اُصولو مطابق د امام حقیقی قرأت د مقتدی حکمی قرأت دے او دا ورله کافی دے۔ دا ته بخپله د قرأت کولو ضرورت نشته۔

(۲۶۰) د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د یو اوږد حدیث خلاصه دا ده چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مرض الوفات کښ حضرت ابوبکر رضی الله عنه وړاندے مونځ ورکولو۔ د مانځه په مینځ کښ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په دوؤ کسانو لاسونه اچولی تشریف راوړو او امام جوړ شو او حضرت ابوبکر رض مُکَبِّر جوړ شو۔ هغکښ د حدیث الفاظ دا دی:

وَاَخَذَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مِنَ الْقِرَاءَةِ مِنْ حَيْثُ كَانَ بَلَغَ اَبُوْبَكْرٍ رض۔ (ابن ماجه ص۸۸)

او نبی کریم صلی الله علیه وسلم د هغه ځائ نه قرأت شروع کړو چه کوم ځائ پورے حضرت ابوبکر رض رسیدلے وو۔

د مسند احمد په ج۱ ص۲۰۹ په روایت کښ دا الفاظ دی:

فَقَرَأَ مِنَ الْمَكَانِ الَّذِىْ بَلَغَ اَبُوْبَكْرٍ مِنَ السُّوْرَةِ۔

نبی کریم صلی الله علیه وسلم د سورت د هغه ځائے نه قرأت شروع کړو کوم ځائے پورے چه حضرت ابوبکر رض رسیدلے وو۔"

د مسند احمد او ابن ماجه سند ونه قوی دی۔ (فتح الباری شرح صحیح البخاری ص۲۶۹ ج ۵ باب الوصایا۔)

د دے قوی حدیث مفهوم دا دے چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا رکعت د فاتحه لوستلو نه بغیر ادا شو۔ د احادیثو په ټوله ذخیره کښ د دے رکعت د وباره کولو ذکر بالکل نشته۔ د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په مبارک ژوند کښ دے اخری عمل نه معلومه شوه چه د مقتدی مونځ بغیر د فاتحه

نه صحیح دے۔ امام بخاریؒ یو ځائے لیکی:

اِنَّمَا یُؤْخَذُ بِالْآخِرِ فَالْآخِرِ مِنْ فِعْلِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ (بخاری ج۱ ص۹۶)

یعنی د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم چه کوم اخری عمل وی په هغے به عمل کولے شی۔

په دے سلسله کښ وړاندے یو څو موقوف آثار ذکر کولے شی:

(۲۶۱) حضرت جابر رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی:

مَنْ صَلّٰی رَکْعَةً لَمْ یَقْرَأْ فِیْهَا بِاُمِّ الْقُرْاٰنِ فَلَمْ یُصَلِّ اِلَّا وَرَاءَ الْاِمَامِ (ترمذی ج۱ ص۴۲ باب ما جاء فی ترک القراءة خلف الامام، موطا امام مالک ص۲۹)

چا چه یو رکعت اوکړو او سورت فاتحه ئے پکښ اونه وئیله نو دهٔ مونځ اونکړو مګر امام پسے مونځ بغیر فاتحے صحیح دے۔

دا حدیث صحیح دے۔ (ترمذی ج۱ ص۴۲)

د دے نه معلومه شوه چه "لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْکِتٰبِ" حکم امام او وحدان له مونځ کونکی د پاره دے، مقتدی د دے نه مستثنٰی دے۔ د دهٔ مونځ بغیر د فاتحه نه صحیح دے۔

(۲۶۲، ۲۶۳) حضرت عبد اللہ بن عمر رضی اللہ عنہ په اِتباعِ سنّت کښ ډیر مشهور دے۔ د هغهٔ قول او عمل د صحیح سند نه داسے روایت شوید ے:

اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ قَالَ اِذَا صَلّٰی اَحَدُکُمْ خَلْفَ الْاِمَامِ فَحَسْبُهٗ قِرَاءَةُ الْاِمَامِ وَاِذَا صَلّٰی وَحْدَهٗ فَلْیَقْرَأْ وَکَانَ ابْنُ عُمَرَ رضی اللہ عنہ لَا یَقْرَأُ خَلْفَ الْاِمَامِ۔ (موطا امام مالک ص۶۸، دارقطنی ج۱ ص۱۵۲)

حضرت ابن عمرؓ فرمائی چه کله تاسو کښ څوک امام پسے مونځ کوی نو د امام قرأت دهٔ د پاره کافی دے او کله چه ځانله مونځ کوی نو ضرور به قرأت لولی او بخپله به حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ امام پسے قرأت نهٔ لوستلو۔

د دے سند صحیح دے۔ (نصب الرایه مع الحاشیه ج۲ ص۱۲)

دا حدیث د حضرت ابنِ عمر رضی اللہ عنہ قول او فعل د دوؤ حدیثونو باندِ مشتمل دے :

(۲۶۴) د حضرت زید بن ثابت رضی اللہ عنہ صحابی ارشاد دے :

لَا قِرَاءَةَ مَعَ الْاِمَامِ فِیْ شَیْءٍ ۔ — د امام سره هر قِسمه مونځ کښ هیڅ قِسمه قرأت نشته ۔

(مسلم ج۱ ص۲۱۵ باب سجود التلاوة، نسائی ج۱ ص۱۱۱)

په دے صحیح حدیث کښ هر قِسمه مونځ سِرّی وی او که جَهری وی مقتدی د پاره د قرأت ویئلو نه منع راغلے ده چه فاتحه او سُورت ټولو ته شامل دے ۔

(۲۶۵) د حضرت عُمر رضی اللہ عنہ (۲۶۶) حضرت زید بن ثابت رضی اللہ عنہ (۲۶۷) حضرت جابر رضی اللہ عنہ ارشاد دے :

لَا یَقْرَأُ خَلْفَ الْاِمَامِ فِیْ شَیْءٍ مِّنَ الصَّلَوٰاتِ ۔ — هیڅ یو قِسم مونځ کښ دِ امام پسے قرأت نهٔ وائی ۔

(طحاوی ج۱ ص۱۲۹، مصنف ابن ابی شیبة ج۱ ص۳۷۶ نحوه)

د دے سَند صحیح دے ۔ (نصب الرایه مع الحاشیه ج۲ ص۱۲)

(۲۶۸) حضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ د قرأت خَلْفَ الْاِمَام باره کښ د یو سوال په جواب کښ اُوفرمائیل :

سَیَکْفِیْکَ قِرَاءَةُ الْاِمَامِ ۔ — د امام قرأت خامخا تا د پاره کافی کیږی ۔

(مصنف ابن ابی شیبة ج۱ ص۳۷۶، مسند عبد الرزاق ج۲ ص۱۳۸)

علامه هَیثمی رحمة الله علیه فرمائی :

رِجَالُهٗ مُوَثَّقُوْنَ ۔ — د دے راویان ثقه او قابلِ اعتماد دی ۔

(مجمع الزوائد ص۱۱۱ جلد دوم)

دا حدیث سَند سره مؤطا امام محمّد ص۹٦، طحاوی ج۱ ص۱۲۹ کښ هم

روایت شو یدے۔ (نصب الرایہ مع الحاشیہ ص ۱۲ ج ۲)

(۲۶۹) د حضرت عبد اللہ بن عباس رضی اللہ عنہ نه چا سوال اوکړو:

أَقْرَأُ وَالْإِمَامُ بَيْنَ يَدَيَّ؟ قَالَ لَا۔ (طحاوی ص ۱۲۹ ج ۱)

چه امام څما مخکښې وی نو آیا څهٔ هغهٔ پسے قرأت وئیلے شم۔ وے فرمائیل، نه۔

دا دے سند صحیح دے۔ (آثار السنن ص ۱۱۶)

(۲۷۰، ۲۷۱، ۲۷۲) حضرت موسیٰ بن عُقبه تابعی رح فرمائیلی دی۔

إِنَّ أَبَا بَكْرٍ رض وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ رض كَانُوا يَنْهَوْنَ عَنِ الْقِرَاءَةِ مَعَ الْإِمَامِ۔ (مسند عبد الرزاق ص ۱۳۹ ج ۲ مرسل

حضرت ابوبکر رض، حضرت عمر رض حضرت عثمان رض امام پسے د قرأت کولو نه منع کړیدہ۔

قوی بحوالہ عمدۃ القاری شرح بخاری ص ۱۳ ج ۶ باب وجوب القراءۃ للامام)

(۲۷۳) د حضرت علی رضی اللہ عنہ ارشاد دے:

مَنْ قَرَأَ مَعَ الْإِمَامِ فَلَيْسَ عَلَى الْفِطْرَةِ۔ (مسند عبد الرزاق ص ۱۳۸ ج ۲)

چا چه امام پسے قرآن اُولوستلو هغه په فطرت (سنتو) باندِ نهٔ دے۔

مرسل قوی، مصنف ابن ابی شیبة ص ۳۷۶ ج ۱، دارقطنی، طحاوی، عمدۃ القاری ص ۱۳ ج ۶)

(۲۷۴) حضرت عُمر بن خطاب رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی:

وَدِدْتُ أَنَّ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ فِي فِيهِ حَجَرٌ۔

چه څوک امام پسے قرأت کوی څما زړهٔ غواړی چه د دهٔ په خُلهٔ کښې کانړے وی۔

(مسند عبد الرزاق ص ۱۳۸ ج ۲، موطا امام محمد ص ۹۸، عمدۃ القاری ص ۱۳ ج ۶)

(۲۷۵) حضرت عبد اللہ بن مسعود رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی:

لَيْتَ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ مُلِئَ فُوهُ تُرَابًا۔

څوک چه امام پسے قرآن لولی، کاش! چه د هغهٔ خُلهٔ د خاورے نه ډکه شی۔

(مسند عبد الرزاق ص ۱۳۸ ج ۲، طحاوی، عمدۃ القاری ص ۱۳ ج ۶)

(۲۷۶) حضرت سعد بن ابی وقاص رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی:

وَدِدْتُ اَنَّ الَّذِیْ یَقْرَأُ خَلْفَ الْاِمَامِ فِیْ فِیْهِ جَمْرَةٌ۔ (موطا امام محمد ص۹۸) — خوښیږم چه امام پسے قران وائی نو ځما زړه غواړی چه د دګا په خُلهٔ کښې اور (سکروټه) وی

(جزء القراءة ص۱۱ للامام بخاری، عمدة القاری ص۱۳/ج۲، مصنف ابن ابی شیبة ص۳۷۶/ج۱)

علامه عبد الحیؒ لکھنوی السعایه ص۲۹۹/ج۲ او اَلتَّعْلِیْقُ الْمُمَجَّدُ ص۱۰۲ باندې فرمائی: "د مذکوره اثارو نه مقصود ویرول او زورنه ورکول دی۔"

څنګه چه په ډیرو احادیثو کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په جمعې سره مونځ نهٔ کونکو کورونو ته د اُور لګولو زورنه ورکړیده۔

فَاُحَرِّقُ عَلَیْهِمْ بُیُوْتَهُمْ — چه څهٔ د دوی کورونو ته اُور اُولګوم

(بخاری ص۸۹/ج۱، مسلم ص۲۳۲/ج۱، مشکوٰة باب الجماعة ص۹۵/ج۱)

همدا رنګ مخکښې ذکر شوی اثارو کښې صحابه کرامو رضی اللہ عنہم هم د قرأت خلف الامام باره کښې ډیره سختی اختیار کړیده، حقیقت مقصود نهٔ دے بلکه صرف ویرول او زورنه او د خفګان اظهار مقصود دے۔

**فائده:** د حضرت عُبادة بنِ الصَّامت رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے،

لَاصَلٰوةَ لِمَنْ لَّمْ یَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْکِتٰبِ۔ (صحاح ستہ) — چه د هغه کس مونځ نهٔ دے شوے چه فاتحه ئے اُو نهٔ لوسته۔

په ظاهره دده قِسمه عامو احادیثو نه دا خبره معلومیږی چه مقتدی لره فاتحه ویل ضروری دی۔ مُحققینو ددے ډیر جوابونه کړیدی۔

**جواب ۱:** بیشکه دا حدیث عام دے لیکن د دلائلو او قرائنو په وجه د عام تخصیص قانون ټولو منلے دے۔ په قرآن او حدیث کښې د عام د تخصیص ډیر مثالونه موجود دی۔

د الله تبارك وتعالیٰ ارشاد دے:

ءَ أَمِنتُم مَّن فِي السَّمَآءِ - (الملک ۲۹/۱۶) ایا تهٔ د هغه ذات نه بے خوفه یے چه د هغهٔ حکومت په اسمانونو کښ دے -

په دے ایتِ کریمه کښ د "مَنْ" لفظ عام دے لیکن ددے نه مُراد صرف د الله تعالیٰ ذات دے -

د الله پاک ارشاد دے :

اِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ - (بخاری ۱۰۰۳/۲) ستاسو نه مخکښ خلق صرف په دے وجه هلاک شو الخ -

په حدیث کښ د "مَنْ" لفظ عام دے او مُراد لئے خاص دے یعنی گنهگار خلق - همدا رنگ : " لَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَّمْ يَقْرَأْ " اگرچه عام دے لیکن دا پاس ذکر شوے ایت کریمه او صحیح احادیثو او اثارو په قرینه سره په دے عام کښ تخصیص دے - ددے مراد مُنفرد او امام دے - مقتدی ددے نه مُستثنیٰ دے -

امام ترمذیؒ ددے حدیث په شرح کښ د امام احمد بن حنبلؒ دا قول نقل کړیدے :

مَعْنٰى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَّمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ إِذَا كَانَ وَحْدَهٗ - (ترمذی ۱/۴۲، باب ما جاء فی ترک القراءۃ خلف الامام) د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ارشاد "لَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَّمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ" مقصد دا دے چه کله چا الله مونځ کوئ نو فاتحه وئیل ضروری ده یعنی مقتدی د پاره دا حدیث نهٔ دے -

✧ ✧ ✧

امام ابُوداؤدؒ د سُفیان بن عُیَینَهؒ نه هم دا تشریح نقل کړیده :

قَالَ سُفْيَانُ لِمَنْ يُّصَلِّيْ وَحْدَهٗ (ابوداؤد ۱/۱۲۶ باب من ترک القراءۃ فی الصلوٰۃ) چه دا حدیث د مُنفرد د پاره دے مقتدی ته شامل نهٔ دے -

جواب[۲] :- اوکه چرے حدیث "لَا صَلٰوةَ" عام اُو مثلے شی - اوکه اُو وائے چه د امقتدی ته هم شامل دے نو بیا اٰیتِ کریمه : "فَاِذَا قَرَأْنٰهُ آه" او حدیث مرفوع "مَنْ کَانَ لَهٗ اِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْاِمَامِ لَهٗ قِرَاءَةٌ" په دلالت سره په خا مخا عام منی چه قرأت حقیقی وی یا حکمی، مقتدی دپاره اٰیت : "وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ" او صحیح حدیث وَاِذَا قَرَأَ فَاَنْصِتُوْا دوجے نه قرأت حقیقی خو منع شو لیکن صحیح حدیث مَنْ کَانَ لَهٗ اِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْاِمَامِ لَهٗ قِرَاءَةٌ په وجه سره قرأت حکمی د دهٔ دپاره کافی او وافی دے [۱]

## دفاتحه نه پس اٰمین وئیل

دحضرت اَبُوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

(۲۷۷) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَمَّنَ الْاِمَامُ فَاَمِّنُوْا - رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله اِمام اٰمین اُووائی نو تاسو هم اٰمین اُووایئ

(بخاری ج۱ ص۱۰۸ و باقی صحاح سته، مشکوٰة ص۷۹)

## اٰمین پټ وئیل پکار دے

حضرت عطاء تابعی رحمة الله علیه فرمائی چه :

(۲۷۸) اٰمِیْنَ دُعَاءٌ (بخاری ج۱ ص۱۰۷) اٰمین دُعا ده -

او د دُعا اُصول او قاعده پټ وئیل دی - دالله پاک ارشاد دے :

(۲۷۹) اُدْعُوْا رَبَّکُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ط (الاعراف ۵۵/۷) په عاجزئ سره او په مزه دخپل رَب نه دعا کوه -

په دویم ځائ کښ ارشاد دے :

---

[۱] حاصل دا دے چه قرأت په دوه قسمه دے - حقیقی او حکمی - حقیقی قرأت خو مقتدی دپاره منع دے او حکمی قرأت د دهٔ د طرف حاصل شوے دے چه کافی او وافی دے ۱۲ ف -

(٢٨٠) إِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ○ (مریم ١٩/٣)

چه کله حضرت زکریا علیه السلام خپل رب ته په پټه دُعا اُغوښته ۔

مشهور مُفسّر إمام رازی رحمة الله علیه سره د دے چه شافعی المسلک دے د آمین په مزه وئیلو مسئله کښې حنفیانو سره موافق او ملګرے دے۔ او د دے ملګرتیا وجه داده چه د قرآن مجید نه د حنفیانو استدلال ډیر قوی او صحیح دے :

قال ابو حنيفة رحمه الله تعالى اخفاء التامين افضل وقال الشافعي رحمه الله تعالى اعلانه افضل واحتج ابو حنيفة رحمه الله تعالى على صحة قوله قال في قوله آمين وجهان احدهما انه دعاء والثاني انه من اسماء الله تعالى فان كان دُعاءً وجب اخفائه لقوله تعالى: اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً وان كان اسمًا من اسماء الله تعالى وجب اخفائه لقوله تعالى وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً ○ فان لم يثبت الوجوب فلا اقل من الندبية

امام ابو حنیفه رحمة الله علیه فرمائیلی دی چه آمین پټ وئیل افضل دی او امام شافعی رحمة الله علیه فرمائیلی دی چه د دے ښکاره وئیل افضل دی ۔ امام ابو حنیفه د خپل قول د صحیح کیدو د پاره دا دلیل پیش کړیدے چه د آمین دوه وجے دی اول داده چه دا دُعا ده او دویمه دا چه دا د الله تعالیٰ د نومونو نه دے ۔ نو که آمین دُعا وی نو واجب دی چه پټ اُو وئیلے شی ځکه چه د الله تعالیٰ ارشاد دے چه تاسو الله تعالیٰ په عاجزئ سره او پټ رابلئ ۔ او که چرے د الله تعالیٰ د نومونو نه وی نو بیا هم پټ وئیل ئے واجب دی ځکه چه د الله تعالیٰ ارشاد دے چه خپل رب یادوئ په زړه کښې په عاجزئ سره او په ویره سره

وَ نحن بهذا القول نقول۔ (تفسیر کبیر ص۱۳۱ ج۲، طبع مصر)

نوکه وجوب ثابت نشی نو د استحباب نه څه کم دے او موږ هم دده قول قائل یو۔

(۲۸۱) د حضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

فَرَفَعُوْا اَصْوَاتَهُمْ بِالتَّكْبِيْرِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِرْبَعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ اِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَلَا غَائِبًا اِنَّكُمْ تَدْعُوْنَ سَمِيْعًا قَرِيْبًا وَهُوَ مَعَكُمْ الخ

دغزوهٔ خیبر په واپسی باندې ...... خلقو په زوره اوازسره اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وئیل۔ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، خلقو! په خپل ځان باندې رحم اوکړئ۔ تاسو کوڼ او غائب هستیٔ ته نه اوازنکوئ بلکه تاسو خو هغه هستیٔ ته اوازکوئ چه هغه نزدے دے او اورید ونکے دے او تاسو سره دے (نو بکار دی چه ستاسو اواز او دعا په مزه وی۔"

د احدیث بخاری شریف کښ په ډیرو بابونو کښ راغلے دے۔ اُوګورئ: کتاب الجهاد ص۴۲۰ ج۱، کتاب الدعوات، کتاب القدر، کتاب التوحید او مسلم ص۳۴۶ ج۲ کتاب الذکر، ابوداؤد، ترمذی، مسندِ احمد۔

(۲۸۲) د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ الذِّكْرِ الْخَفِيُّ۔ (مسند احمد ص۱۷۲ ج۱ و ص۱۸۰ ج۱ وابن حبان والبیہقی فی شعب الایمان)

د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد عالی دے چه د ټولو نه غوره ذکر هغه دے چه پټ وی۔

امام جلال الدین سیوطی شافعیؒ فرمائیلی دی چه دا روایات صحیح دی۔ (الجامع الصغیر ص۸ ج۲)۔ علامه عزیزیؒ فرمائیلی دی چه دده

سند صحیح دے۔ (السراج المنیر ص۲۶۲/۲ طبع مصر)۔ یو حدیث دے:

خَیْرُ الدُّعَاءِ الْخَفِیُّ۔ — د ټولو نه غوره دُعا پټه دُعا ده۔

(صحیح ابن حبان، فتح الملہم ص۲/۳۲ شرح مسلم۔)

د قرآن او حدیثو په رڼا کښې د دُعا اُصول او آداب پټ وئیل دی۔ او کله چرے شارع علیہ السلام د طرفنه د دُعا په جهر تعین شوے وی نو هلته به په زوره وی۔

(۲۸۳) د حضرت وائل بن حُجر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ صَلّٰی بِنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَرَأَ غَیْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَیْهِمْ وَلَا الضَّآلِّیْنَ ۝ قَالَ اٰمِیْنَ وَاَخْفٰی بِهَا صَوْتَهٗ۔

حضرت وائل بن حجر رض فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته مونځ راکولو چه کله ئے غَیْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَیْهِمْ وَلَا الضَّآلِّیْنَ اُووئیلو نو امین ئے اُووئیلو او پټ ئے اُووئیلو۔

(ترمذی ص۳۴/۱۲، ابوداود طیالسی، دارقطنی، مستدرک حاکم، مسند احمد، مسند ابویعلی، طبرانی، کتاب القراءة للحاکم۔)

محدث حاکم فرمائیلی دی چه دا دے سند صحیح دے۔ صَحِیْحُ الْاِسْنَاد۔

(نصب الرایہ ص۳۶۹/۱۲، عمدة القاری شرح بخاری ص۵/۶۴)

(۲۸۴) د حضرت سَمُرَه بن جُندب رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

اَنَّهٗ حَفِظَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ سَكْتَتَیْنِ سَكْتَةً اِذَا كَبَّرَ وَسَكْتَةً اِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ غَیْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَیْهِمْ وَلَا الضَّآلِّیْنَ ۝ (ابوداود ص۱۲/۱ باب السکتة عند الافتتاح، ابن ماجه، مسند دارمی نحوه، مشکوٰة ص۷۷۔)

حضرت سَمُرَه بن جُندب رض د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه دوه سکتے یاد کړے دے یوه کله چه به نبی علیه السلام تکبیر تحریمه اووے او دویمه کله چه به د غَیْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَیْهِمْ وَلَا الضَّآلِّیْنَ ۝ د قرأت نه فارغ شو۔

"دے سند قوی دے۔" علامہ قاریؒ مرقات شرح مشکوٰۃ ج۲ ص۲۸ باندې لیکلی دی:

قال ابن حجر رواه ابوداؤد وسنده حسن بل صحیح۔ — ابن حجرؒ فرمائیلی دی چه ددے سند حَسن بلکه صحیح دے۔

په دے قوی مرفوع حدیث کښې د دوؤ سکتو ذکر دے۔ اوله سکته ثناء او دعا دپاره ده او دویمه سکته امین دپاره ده۔ (مرقاۃ شرح مشکوٰۃ ص۲۸ جلد دوم)

(۲۸۵) حضرت ابووائل رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

لَمْ يَكُنْ عُمَرُ وَعَلِيٌّ يَجْهَرَانِ بِبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَلَا بِاٰمِيْنَ۔ — حضرت عمرؓ او حضرت علیؓ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ او امین په زوره نهٔ وئیلو۔ (تهذیب الآثار لابن جریرؒ، شرح معانی الآثار للطحاویؒ ج۱ ص۱۵۰، عمدة القاری شرح بخاری ج۶ ص۵۲)

(۲۸۶) د خلیفهٔ راشد حضرت عمر بن خطاب رضی اللہ عنہ ارشاد دے:

اَرْبَعٌ يُخْفِيْهِنَّ الْاِمَامُ اَلتَّعَوُّذُ وَبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَاٰمِيْنَ وَاَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ۔ — امام دپاره څلور څیزونه پټ وئیل پکار دی۔ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ او بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ او امین او اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ۔

(کنز العمال ج۴ ص۲۴۹، محلی ابن حزم، فتح الملهم شرح مسلم ج۲ ص۵۲، معارف السنن شرح ترمذی ج۲ ص۴۱۳)

(۲۸۷) حضرت ابووائل رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

كَانَ عَلِيٌّ وَابْنُ مَسْعُوْدٍ لَا يَجْهَرَانِ بِبِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَلَا بِالتَّعَوُّذِ وَلَا بِالتَّاْمِيْنِ۔ — حضرت علیؓ او حضرت عبداللہ بن مسعودؓ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ او تعوذ او امین په زوره نهٔ وئیلو (بلکه

(مجمع الزوائد ص۱۱۳ ج۲ طبرانی کبیر، معارف السنن ص۱۳ ج۲) پټ به ئے وئیلو۔

(۲۸۸) حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائیلی دی:

يُخْفِي الْإِمَامُ ثَلَاثًا التَّعَوُّذُ وَ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَ اٰمِيْنَ۔ — امام دیاره درے څیزونه پټ وئیل پکاردی: ۱ اَعُوْذُ بِاللهِ الخ ۲ بِسْمِ اللهِ الخ ۳ اٰمین الخ۔

(محلی ابن حزم، تعلیقاً، فتح الملهم شرح مسلم ص۵۲ ج۲)

(۲۸۹) حضرت ابراهیم نخعی تابعی رح فرمائیلی دی:

اَرْبَعٌ يُخْفِيْهِنَّ الْإِمَامُ التَّعَوُّذُ وَبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَسُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَ اٰمِيْنَ۔ — امام به څلور څیزونه پټ وائی ۱ اَعُوْذُ بِاللهِ الخ ۲ بِسْمِ اللهِ الخ ۳ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ الخ او ۴ اٰمین۔

(کتاب الآثار امام محمد رح ص۱۰، مسند عبد الرزاق ص۸۷ ج۲ بسند صحیح، نصب الرایه ص۳۲۵ ج۱، عمدة القاری شرح بخاری ص۵۲ ج۲، مصنف ابن ابی شیبة ص۲۱۱ ج۱)

مفسر طبری رح فرمائیلی دی: آمین بالجهر او آمین بالاخفاء دواړه ثابت دی لیکن آمین بالاخفاء راجح دے۔ وجه د ترجیح داده:

اِذَا كَانَ اَكْثَرُ الصَّحَابَةِ وَ التَّابِعِيْنَ عَلٰى ذٰلِكَ۔ — ځکه چه د اکثر صحابه او تابعینو په پټ وئیلو عمل وو۔

(الجواهر النقی علی البیهقی ص۵۸ جلد دوم)

**فائده:**- په بعض احادیثو کښ د آمین بالجهر ذکر شته دے محققینو دے پاس ذکر شوی دلائلو او احادیثو په ثبوت کښ مختلف توجیهات لیکلی دی:

۱:- کله کله به ئے د خلقو د تعلیم دپاره په زوره وئیلو چه دے خلقو ته معلومه شی چه په دے ځائ کښ آمین وئیلے کیږی۔ دے

لاند یئی احادیثو نه دده توجیه تائید کیږی۔

(۲۹۰) قَالَ اٰمِيْن حَتّٰى يَسْمَعَ مَنْ يَّلِيْهِ مِنَ الصَّفِّ الْاَوَّلِ۔ (ابوداؤد ص۱۴۲، ابن ماجه)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم امین اُووئیلو تر دے چه روصبی صف کښ چه کوم نزدے وُو هغوی آوریدل۔

(۲۹۱) دحضرت حجر بن وائل رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

فَقَالَ اٰمِيْن مَا اُرَاهُ اِلَّا لِيُعَلِّمَنَا۔ (کتاب الاسماء والکنی ص۱۹۷ للحافظ ابی بشر الدولابی)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم (په زوره) امین اُووئیلو ځما په خیال هغوی د تعلیم دپاره په زوره وئیلے وُو۔

داحدیث دغه ځکښ توجیه دپاره واضح دلیل دے۔

حافظ ابنِ قیّم حنبلی رحمه الله په زَادُالْمَعَاد کښ فرمائیلی دی چه دنبوت په زمانه کښ دمقتدیانو د اطلاع دپاره د اِخفاء قابل څیزونوکښ به کله کله جهر کوُلو؛

وَمِنْ هٰذَا اَيْضًا جَهْرُ الْاِمَامِ بِالتَّامِيْنِ۔

اوهم د دغے کاروئو نه د امام امین په زوره وئیل دی۔ انتهٰی۔

لکه څنګه چه دتسمیه په مسئله کښ بیان شویدے چه دخلقو د اطلاع اوتعلیم دپاره دبعض کاروئو په جهر اوپه زوره کوُل د ډیرو احادیثو نه ثابت دی لکه دماسپخین اومازیګر مونځ کښ قرأت په زوره وئیل بخپله دنبی کریم صلی الله علیه وسلم نه ثابت دی۔

(بخاری ص۱۰۵ ج۱ وص۱۰۷ ج۱ ومسلم ص۱۸۵ ج۱)

دخلیفهٔ راشد حضرت عمر بن خطّاب رضی الله عنه سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ په زوره وئیل۔ (مسلم ص۱۷۲ ج۱)

دحضرت ابن عبّاس رضی الله عنه دجنازے په مونځ کښ (ددُعا په غرض

فاتحه په زوره وئیل - (نسائی ج۱ ص۱۴۱)

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه اَعُوْذُ بِاللهِ په زوره وئیل - (کتاب الام ص۹۳ جلد اول ، امام شافعیؒ) نو د امین په زوره وئیل هم په دے باب کښ داخل دی (فتح الملهم شرح صحیح مسلم ج۲ ص۲۲ ، معارف السنن شرح جامع ترمذی ص۴۰۴ ج۲)

دویمه توجیه دا ده چه د جهر احادیث د بیان جواز باندِ حمل دے یا ابتدائی دَور باندِ حمل دے - د اخری دَور عمل او راجح عمل امین پټ وئیل دی - ځکه چه حضرت عمرؓ ، حضرت علیؓ ، حضرت ابن مسعودؓ او جمهورو صحابو او تابعینو اختیار کړے دے -

## رکوع ته د تلو په وخت تکبیر وئیل

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے -

(۲۹۲) کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ اِلَی الصَّلٰوةِ یُکَبِّرُ حِیْنَ یَقُوْمُ ثُمَّ یُکَبِّرُ حِیْنَ یَرْکَعُ - (بخاری ج۱ ص۱۰۹ ومسلم ، مشکوٰة ج۱ ص۷۶)

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله مونځ ته اودریدو نو تکبیر به ئے وئیلو د قیام د پاره او چه کله به رکوع ته تلو نو تکبیر به ئے وئیلو -

## رکوع ته د تلو په وخت او د رکوع نه د اوچتیدو په وخت رفع یدین نشته

(۲۹۳) د الله پاک ارشاد دے :

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ صَلٰوتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ٥ (المؤمنون : ۱، ۲)

تحقیق هغه ایمان والا کامیاب دی چه خپل مونځونه په خشوع سره کوی -

حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه د "خٰشِعُوْنَ" په تفسیر کښ فرمائیلی دی.

مُخْبِتُوْنَ مُتَوَاضِعُوْنَ لَا يَلْتَفِتُوْنَ يَمِيْنًا وَّلَا شِمَالًا وَلَا يَرْفَعُوْنَ اَيْدِيَهُمْ فِي الصَّلٰوةِ۔ (تفسیر ابن عباس رضؓ ص۲۱۲)

عاجزی او تواضع کوونکی، نه ښی طرفته کوری او نه کس طرفته او نه په مانځه کښې لاسونه اوچتوی۔

(۲۹۴) د حضرت جابر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَالِيْ اَرَاكُمْ رَافِعِيْ اَيْدِيْكُمْ كَاَنَّهَا اَذْنَابُ خَيْلٍ شُمُسٍ اُسْكُنُوْا فِي الصَّلٰوةِ۔ (مسلم ج۱ ص۱۸۱، باب الامر بالسکون فی الصلوۃ، ابوداؤد نسائی، مسند احمد، طحاوی)

حضرت جابر رضی اللہ عنہ فرمائی چه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم مونږ ته بهر تشریف راوړو، نو وے فرمائیل چه څه خبره ده چه څۀ تاسو وینم چه خپل لاسونه اوچتوئ لکه د سرکشه آسونو لکۍ وی۔ په مانځه کښې سکون آرام اختیار روئ۔

دا صحیح مرفوع قولی حدیث دے خبره دلیل دے چه په مانځه کښې رفع منع دے۔ او ددے په مقابله کښې سکون واجب او لازم دے۔ د "فِي الصَّلٰوةِ" لفظ د تکبیر تحریمه نه سلامه پورے ته شامل دے۔ تکبیر تحریمه خو د مونځ شروع ده۔ بیا په دے تکبیر سره لاسونه اوچتول د متواترو احادیثو نه ثابت دی۔ په اجماع سره هغه د دے ممانعت نه خارج او مُستثنیٰ دے۔ د دے نه پس رکوع وغیره هرځائ ته دا رفع یدین شامل دے۔

(۲۹۵) د حضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ اُصَلِّيْ بِكُمْ صَلٰوةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ اِلَّا فِيْ اَوَّلِ مَرَّةٍ۔

حضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ خپلو شاګردانو ته د مونځ عملی تعلیم ورکولو دپاره اوفرمائیل چه څۀ تاسو ته د

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم مونځ اُوښایم، بیا هغه مونځ اُوکړو او صرف په اول ځل (تکبیر تحریمه کښ) لاسونه اُوچت کړل۔

(ترمذی ج۱ ص۳۵، ابوداود ج۱ ص۱۱۶، باب من لم یذکر الرفع عند الرکوع، نسائی ج۱ ص۱۶۱، محلی ابن حزم ظاهری ج۴ ص۸۸، دارقطنی، بیهقی مصنف ابن ابی شیبة، موطا امام محمد، مسند احمد، طحاوی۔)

دا حدیث حسن دے۔

علامه ترمذی رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی: حَدِیْثٌ حَسَنٌ (ترمذی ج۱ ص۳۵)

علامه اِبنِ حزم ظاهری دیته صحیح وئیلی دی۔

حافظ ابن حجر شافعیؒ لیکلی دی:

وَهٰذَا الْحَدِیْثُ حَسَّنَهُ التِّرْمِذِیُّ وَصَحَّحَهُ اِبْنُ حَزْم۔ (التلخیص الحبیر علی شرح المهذب ج۱ ص۲۲۲ طبع مصر)

دے حدیث ته امام ترمذی حسن وئیلی دی او علامه ابن حزم ورته صحیح وئیلی دی۔

(۲۹۶) وحضرت عبد اللہ بن عمر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَاَیْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ یَدَیْهِ حَتّٰی یُحَاذِیَ بِهِمَا مَنْکِبَیْهِ..... وَاِذَا اَرَادَ اَنْ یَّرْکَعَ وَبَعْدَ مَا یَرْفَعُ رَاْسَهٗ مِنَ الرُّکُوْعِ لَا یَرْفَعُهُمَا۔ (صحیح ابوعوانه ج۲ ص۹۰، مسند حُمیدی ج۲ ص۲۷۷)

حضرت عبد اللہ بن عُمر رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی چه ما رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم اولیدو چه کله ئے مونځ شروع کړلو نو ترضټلو اُوګو پورے یه ئے لاسونه اُوچتول..... او چه کله به ئے د رکوع کولو اراده کوله او د رکوع نه اُوچتیدو په وخت کښ به ئے رفع یدین نه کول۔

مُحدّث ابُوعوانه د امام مسلمؒ شاګرد دے، خپل تَصنیف صحیح اَبُوعوانه کښ ئے په مسلم باندې تحقیقی کار کړیدے۔ د صحیح مُسلم د احادیثو زیات سَند ونه ئے جمع کړیدی۔ (بستان المحدثین ص۹۵، ۹۸)

او امام حُمَیدِیؒ د حضرت امام بخاریؒ شیخ او اُستاذ دے۔ (بستان المحدثین ص۲۲۳)
غرض دا چه دوارہ ډیر لوئ محدثین او ثقه دی۔ د دوی پاس ذکر شوے حدیث صحیح دے او په ترک رفع یدین باندِ صریح او واضح دلیل دے۔ دا راتلونکی آکر چه مُتَکَلَّم فِیه دی، بیا هم په تائید کښ پیش کړلے شی۔ (۲۹۷) د حضرت براء بن عازب رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

کَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اِذَا کَبَّرَ لِاِفْتِتَاحِ الصَّلٰوۃِ رَفَعَ یَدَیْہِ اِلٰی قَرِیْبٍ مِنْ اُذُنَیْہِ ثُمَّ لَا یَعُوْدُ۔ (ابوداود ج۱ ص۱۱۶، طحاوی، دارقطنی، مصنف ابن ابی شیبۃ۔)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم به چه کله د مونځ شروع کولو تکبیر تحریمه اُووئیله نو خپلو غوږونو ته نزدے به ئے لاسونه اُوچت کړل بیا به ئے واپس کیدو (رفع یدین به ئے نه کول۔

(۲۹۸) د حضرت عبد اللہ بن مسعود رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ صَلَّیْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ وَ اَبِیْ بَکْرٍ وَعُمَرَ فَلَمْ یَرْفَعُوْا اَیْدِیَھُمْ اِلَّا عِنْدَ اِسْتِفْتَاحِ الصَّلٰوۃِ (دارقطنی، بیهقی، کامل ابن عدی)

حضرت عبد اللہ بن مسعود رضی اللہ عنہ فرمائی چه ما د رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم او حضرت اَبُوبکر رضی اللہ عنہ او حضرت عمر رضی اللہ عنہ سره مونځ کړیدے نبی علیه السلام او شیخینو رضی اللہ عنہما به صرف د مانځه په شروع (تکبیر تحریمه) کښ لاسونه اُوچتول۔"

(۲۹۹) د حضرت اَبُوهریره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

کَانَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ فِی الصَّلٰوۃِ رَفَعَ یَدَیْہِ مَدًّا۔ (ابوداود ج۱ ص۱۱۶، نسائی، ترمذی)

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم به چه کله مونځ کښ داخلیدو نو لاسونه به ئے ښه اُوچتول۔

په دے حدیث کښ صرف د تکبیر تحریمه کښ د رفع یدین ذکر دے په رکوع کښ د رفع یدین ذکر نشته دے ځکه خو امام اَبُوداؤد "باب

من لم یذکر الرفع عند الرکوع" کښې دا حدیث ذکر کړو۔

(۳۰۰) حضرت ابنِ عباس رضی اللہ عنہ نه روایت دے:

تُرْفَعُ الْاَيْدِىْ فِىْ سَبْعَةِ مَوَاطِنَ اِذَا قَامَ اِلَى الصَّلٰوةِ وَاِذَا رَأَى الْبَيْتَ وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَفِىْ جَمْعٍ وَعَرَفَاتٍ وَعِنْدَ الْجِمَارِ۔

په اووه ځايونو کښې لاسونه اوچتولے شي (رفع یدین کولے شي) چه کله مونځ ته اودریږی او چه کله بَيْتُ الله اووینی او په صَفا باندې او مَروه باندې، مزدلفه کښې، عرفات کښې او جمرات کښې۔

دا حدیث د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ مرفوع هم مروی دے او موقوف هم۔ مرفوع حدیث په طبرانی، جزء رفع یدین د امام بخاری رحمه الله، مُسند بزار، مستدرک حاکم، بیهقی کښې دے او موقوف حدیث په مصنف ابن ابی شیبة ص ۲۳۷ ج ۱، مسند بزار کښې دے۔ د ابن ابی شیبة موقوف حدیث حَسَن دے۔ (معارف السنن ص ۴۹۵ جلد ۲)

(۳۰۱) همدا رنګ دا حدیث د حضرت عبد الله بن عُمر رضی اللہ عنہ نه هم مرفوع او موقوف دواړو طریقو سره مروی دے۔ مرفوع حدیث جزء رَفْعُ الْيَدَيْن د اِمام بخاری رح، مُسند بزار، مستدرک حاکم، بیهقی کښې دے او موقوف حدیث مُسند بزار کښې دے۔ تفصیل د پاره اوګورئ: (نصب الرایه ص ۳۹۰ ج ۱، ص ۳۹۱ ج ۱ للزیلعی رح او الدرایه ص ۱۲۸ ج ۱ للحافظ ابن حجر رح)

(۳۰۲) د حضرت عبّاد تابعی رح نه روایت دے:

اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ يَدَيْهِ فِىْ اَوَّلِ الصَّلٰوةِ ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا فِىْ شَىْءٍ حَتّٰى يَفْرُغَ۔

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم چه به کله مونځ شروع کولو نو په شروع کښې به ئے لاسونه اوچتول۔ بیا به ئے د مانځه نه تر فارغیدو پورے لاسونه نه اوچتول۔

(الخلافیات للبیهقی، نصب الرایه ج۱ ص۴۰۲، نیل الفرقدین ص۱۲۲ للعلامه محمد انورشاه کشمیریؒ، معارف السنن ج۲ ص۴۹۶)

دا حدیث مرسل جیّد دے۔ (معارف السنن ج۲ ص۴۹۴، نیل الفرقدین ص۱۲۲)

(۳۰۳) حضرت اسود تابعی رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

رَأَیْتُ عُمَرَ رضی الله عنه یَرْفَعُ یَدَیْهِ فِیْ اَوَّلِ تَکْبِیْرَةٍ ثُمَّ لَا یَعُوْدُ۔ — ما حضرت عمر رضی الله عنه اُولیدو چه په ماننځ کښ اول تکبیر (تکبیر تحریمه) کښ ئے رفع یدین کړلو او بیا به ئے نه کولو۔

(مصنف ابن ابی شیبه ج۱ ص۲۳۷، طحاوی ج۱ ص۱۳۱)

دا دے سند صحیح دے۔ حافظ ابن حجر شافعیؒ فرمائیلی دی:

رِجَالُهٗ ثِقَاتٌ۔ (الدرایه ج۱ ص۱۵۲)

محدث الماردینیؒ د محدث ابن ابی شیبهؒ په سند سره نقل کوی او لیکی: صَحِیْحٌ عَلٰی شَرْطِ مُسْلِمٍ۔ (الجواهر النقی علی سنن البیهقی ج۲ ص۷۵ طبع مصر)

علامه بدر الدین عینیؒ فرمائیلی دی:

اِسْنَادٌ صَحِیْحٌ۔ (عمدة القاری شرح صحیح بخاری ج۵ ص۲۷۳ طبع مصر)

امام طحاویؒ فرمائی: حَدِیْثٌ صَحِیْحٌ۔ (طحاوی ج۱ ص۱۳۳)

(۳۰۴) اِنَّ عَلِیًّا کَانَ یَرْفَعُ یَدَیْهِ فِیْ اَوَّلِ تَکْبِیْرَةٍ مِّنَ الصَّلٰوةِ ثُمَّ لَا یَرْفَعُ بَعْدُ۔ — حضرت علی رضی الله عنه به د مانځه په اول تکبیر سره رفع یدین کولو۔ د دے نه پس به ئے رفع یدین نه کولو۔ (مصنف ابن ابی شیبه ج۱ ص۲۳۶، دارقطنی، موطا امام محمدؒ، جزء رفع الیدین للامام بخاریؒ، طحاوی ج۱ ص۱۳۲)

دا حدیث هم صحیح دے۔ رِجَالُهٗ ثِقَاتٌ۔ (الدرایه ج۱ ص۱۵۲) اَثَرٌ صَحِیْحٌ۔ (نصب الرایه ج۱ ص۴۰۶) صَحِیْحٌ عَلٰی شَرْطِ مُسْلِمٍ۔ (عمدة القاری ج۵ ص۲۷۴)

حضرت مجاهد تابعیؒ فرمائیلی دی:

(۳۰۵) صَلَّیْتُ خَلْفَ اِبْنِ عُمَرَ رضی الله عنه فَلَمْ یَکُنْ یَرْفَعُ یَدَیْهِ اِلَّا فِیْ — حضرت مجاهدؒ فرمائی چه ما حضرت ابن عمر رضی الله عنه پسے مونځ اُوکړو نو هغه صرف د مانځه

التَّكْبِيْرَةِ الْاُوْلٰى مِنَ الصَّلٰوةِ۔ په اول تکبیر کښې رفع یدین کولو۔
(مصنف ابن ابی شیبة ص۲۳۷/۱، البیهقی فی المعرفة، طحاوی ص۱۳۳/۱)

ددې سند صحیح دے۔ سَنَدُهٗ صَحِیْحٌ۔ (آثار السنن ص۱۳۶، معارف السنن ص۴۹۵/۲)

حضرت مجاهدؒ لس۱۰ کالو پورې د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په خدمت کښې پاتې شوید ے۔ (فیض الباری شرح بخاری ص۱۴۲/۲)

(۳۰۶) حضرت ابراهیم نخعیؒ تابعی فرمائیلی دی:

كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ شَيْءٍ مِنَ الصَّلٰوةِ اِلَّا فِي الْاِفْتِتَاحِ۔ حضرت عبد الله بن مسعودؓ صرف د مونځ په ابتدا (تکبیر تحریمه) کښې رفع یدین کولو

(مصنف ابن ابی شیبة ص۲۳۶/۱، مرسل جَیِّدٌ آثار السنن ص۱۳۹، طحاوی ص۱۳۳/۱)

(۳۰۷) حضرت ابو اسحقؒ تابعی فرمائیلی دی۔

كَانَ اَصْحَابُ عَبْدِ اللهِ (اِبْنِ مَسْعُوْدٍ) وَاَصْحَابُ عَلِيٍّ لَا يَرْفَعُوْنَ اَيْدِيَهُمْ اِلَّا فِيْ اِفْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ۔ د حضرت عبد الله بن مسعودؓ او د حضرت علیؓ شاګردانو به صرف د مونځ په ابتداء کښې رفع یدین کولو۔

(مصنف ابن ابی شیبة ص۲۳۶/۱)

ددې سند صحیح دے۔ الجواهر النقی علی البیهقی ص۷۹/۲)

دا ښکاره خبره ده چه د شاګردانو عمل د استاذانو او مشائخو د تعلیم اثر وو۔ امام ترمذیؒ د حضرت عبد الله بن مسعودؓ دا پاس ذکر شوې د ترک رفع یدین حدیث نقل کړو او وې فرمائیل:

وَبِهٖ يَقُوْلُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِّنْ اَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِيْنَ۔ (ترمذی ص۳۵/۱) د اهلِ علم صحابهؓ او تابعینو نه ډیر د ترک رفع یدین قائل وو۔

فائده:- بعضِ صحیح احادیثو کښې رکوع ته د تلو او اوچتیدو په

وخت د رفع یدین ذکر شته. بعض محققینو دا پاس صحیح احادیث او
آثارو په رڼا کښ دومره دا توجیه کړیده چه رفع یدین د اول دور واقعه
ده چه روستو پریخودلے شو - که د نبوت په آخری دور کښ د رفع یدین
عمل پریخودے نه وے نو خلفائے راشدینو (خاصکر حضرت عمرؓ او
حضرت علیؓ) چه په خپل دور کښ امام او پیشوا وُو نو هغوی ب
بالکل نه وُو پریخودے او نه به دوے په پریخودو باندے صحابه کرام
خاموشه پاتے شوی وُو.

حقیقت دا دے چه دورِ نبوت کښ د وحی الٰهی نه د نورو احکامو
پشان د مونځ احکام تدریجاً شوی دی. په مانځه کښ خبرے
او سلام جائز وُو. چه په اجماع سره روستو منسوخ شو لکه چه د
راتلونکی صحیح مرفوع احادیثو نه واضحه کیږی.

(۳۰۸) عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ كُنَّا نَتَكَلَّمُ فِي الصَّلٰوةِ حَتّٰى نَزَلَتْ وَقُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ فَأُمِرْنَا بِالسُّكُوتِ وَنُهِينَا عَنِ الْكَلَامِ.

حضرت زید بن ارقمؓ فرمائیلی دی، مونږ په مانځه کښ خبرے کولے ترڅو چه "وَقُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ" نازل شو. نو مونږ ته په مانځه کښ د چپ اوسیدو حکم اوشو

(بخاری ج۱ ص۱۶۰ باب ماینهی من الکلام فی الصلوٰة، مسلم ج۱ ص۲۰۴ باب تحریم الکلام فی الصلوٰة.)

(۳۰۹) د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه نه یو اوږد حدیث دے:

أُحِيلَتِ الصَّلٰوةُ ثَلٰثَةَ أَحْوَالٍ وَأُحِيلَتِ الصِّيَامُ ثَلٰثَةَ أَحْوَالٍ الخ (ابوداؤد ج۱ ص۷۴ باب کیف الاذان، مسند احمد ج۵ ص۲۴۶)

مونځ او روژه کښ درے تبدیلی شوی دی

(وړاندے حدیث کښ د درےیو تبدیلو ذکر په تفصیل سره شوے دے
د اسلام په اول دور کښ د تکبیر تحریمه او رکوع نه بغیر د مانځه
په هر حرکت یعنی تلو راتلو هر تکبیر سره رفع یدین کیدل چه د هغے تفصیل د

## یه سجدۀ کښې رفع یدین

امام نسائی رحمة الله علیه په دے بانډې یو مستقل باب قائم کړیدے۔

ب رفع الیدین للسجود" په سجده کښې د رفع یدین باب ص ۱۶۵/۱۲۰۔
او د حضرت مالک بن الحویرث رضی الله عنه دا مرفوع حدیث ئے راوړے دے:

(۲۱) اِنَّهٗ رَاَی النَّبِیَّ صلی الله علیه وسلم ... عَ یَدَیْهِ فِیْ صَلٰوتِهٖ اِذَا ... دَ وَاِذَا رَفَعَ رَاْسَهٗ مِنَ ... جُوْدِ۔ (نسائی ص ۱۶۵/۱۲۰)

حضرت مالک رضی الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اولیدلو چه کله ئے سجده کوله او چه کله ئے د سجدے نه سر اوچت کړو نو رفع یدین ئے اوکړل۔

امام نسائیؒ بیا ص ۱۶۷/۱۲ بانډې دوباره "باب رفع الیدین عند الرفع من السجدة الاولی" قائم کړو او د حضرت مالکؓ دا پاس حدیث ئے ذکر کړیدے:
د نسائیؒ دا حدیث صحیح دے۔ (فتح الباری ص ۱۸۵/۱۲۰)

په سجدۀ کښې رفع یدین د دے لاندینو احادیثو نه ثابت دی:

(۲۱..) د حضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث (مسند ابویعلیٰ، سند صحیح)
(۲۱..) د حضرت عبدالله بن عمرؓ مرفوع حدیث۔ (طبرانی - سند صحیح)
(۲۱..) د حضرت وائل بن حجرؓ مرفوع حدیث (دارقطنی - سند صحیح)
(۲۱..) د حضرت ابن عباسؓ مرفوع حدیث (نسائیؒ)
(۲۱..) د حضرت ابوهریرهؓ مرفوع حدیث۔ (ابن ماجه)

## دویم رکعت ته د پورته کیدو په وخت رفع یدین

د حضرت علی رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۲۱..) وَاِذَا قَامَ مِنَ السَّجْدَتَیْنِ ... عَ یَدَیْهِ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله به د دویے سجدے نه پاڅیدو نو رفع یدین به ئے کوؤل۔

(ابوداؤد ج۱ ص۱۱۶، ترمذی، نسائی، ابن ماجه، مسند امام احمد)

امام احمدؒ او امام ترمذیؒ دے حدیث ته صحیح ویلی دی۔

(اوجز المسالک شرح موطا امام مالک ج۱ ص۲۰۲)

دا رفع یدین (۳۱۷) د حضرت ابن عباسؓ (۳۱۸) حضرت مالک بن حویرثؓ نه صحیح احادیثو سره هم ثابت دے چه په نسائی او طحاوی کښې روایت شویدی۔ (اوجز المسالک ج۱ ص۲۰۲)

## دریم رکعت ته پورته کیدو په وخت رفع یدین

امام بخاریؒ په دے مسئله باندے مستقل باب قائم کړیدے،

باب رَفْعُ الْيَدَيْنِ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ۔ د دوؤ رکعتونه پس پاڅیدو وخت کښې د رفع یدین باب۔

بیا د دے د لاندے ئے د حضرت ابن عمرؓ دا حدیث راوړے دے چه مرفوع هم دے او موقوف هم۔

(۳۱۹) إِنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ...... وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ رَفَعَ يَدَيْهِ وَرَفَعَ ذٰلِكَ ابْنُ عُمَرَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۔ (بخاری ج۱ ص۱۰۲

حضرت ابن عمرؓ...... چه کله دوؤ رکعتونه پس پاڅیدو نو رفع یدین ئے کولو. حضرت ابن عمرؓ دا نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته منسوب کړیدے او مرفوع ئے بیان کړیدے۔

طبع اصح المطابع، ابوداؤد)

هم دا رفع یدین (۳۲۰) د حضرت ابوحمیدؓ مرفوع صحیح حدیث او (۳۲۱) د حضرت علیؓ مرفوع صحیح حدیث نه هم ثابت دے

(ابوداؤد باب افتتاح الصلاة)

## د موڼځ هر تکبیر سره رفع یدین

د حضرت جابرؓ مرفوع حدیث

(۳۲۲) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ كُلِّ تَكْبِيْرَةٍ مِّنَ الصَّلٰوةِ۔ (مسند امام احمد)

رسول الله صلی الله علیه وسلم دمانځه په هر تکبیر سره رفع یدین کولو.

(۳۲۳) حضرت ابن عباس رضی الله عنهما مرفوع حدیث چه د حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنهما دمانځه متعلق دے - په دیکښې هر تکبیر سره رفع یدین ذکر دے -( ابوداؤد ص ۱۱۵/۱۲۰ )

## دکلام حاصل

څنګه چه په دے مختلف ځایونوکښې رفع یدین د صحیح احادیثو نه ثابت کیدلو باوجود د آئمه اربعه په نزد نور صحیح احادیثو دلیل سره په اول دور باندې حمل دی او منسوخ او پریخودے شویدے.

همدارنګ د رکوع رفع یدین هم د صحیح احادیثو نه ثابت کیدلو باوجود حنفیه او مالکیه محققین علماء او محدثین او فقهاء په نزد مرپاس ذکر شوی صحیح احادیثو او آثارو په وجه پریخودے شوید ے خاصکر د صحیح مسلم قولی مرفوع حدیث اُسْکُنُوْا فِي الصَّلٰوةِ کښې بشکاره د رفع یدین نه کولو حکم او امر دے -

## رکوع کول

دالله تعالی ارشاد دے :

(۳۲۴) يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا ۔ ( الحج ۲۲/۷۷ )

اے ایمان والو ! رکوع کوئ .

څنګښې وئیلی شوی ؤ چه د مونځ حقیقت او روح د الله تعالی د شان اولوئی والی اظهار او اقرار دے او د خپلے بندګئ او عاجزئ اعتراف دے سر اُوچت ساتل د تکبر اولوئئ علامه ده او دے اُلټه سر ښکته کول د عاجزئ او خاکسارئ د ښودلو نه لوئے اظهار

رکوع او سجده کړه - دوې وجې نه رسول الله صلی الله علیه وسلم درکوع او سجدې بنه طریقے سره اداکولو تاکید فرمائیلے دے -

## د رکوع شکل او صورت

د أُمُّ الْمُؤْمِنِيْنَ حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے.

(۳۲۵) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم إِذَا رَكَعَ لَمْ يُشْخِصْ رَأْسَهُ وَلَمْ يُصَوِّبْهُ وَلٰكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ.
(مسلم ۱۹۴/۱، ترمذی، ابن ماجه، مشکوٰة ص۷۵)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به چه کله رکوع کوله نو خپل سَر به ئے نهٔ پورته کولو او نهٔ به ئے ښکته ساتهٔ خو د دے مینځ کښ به ئے و.

یعنی په رکوع کښې دِ سر د شا سره برابر وی نهٔ دِ د هغے نه اُوچت او نهٔ ښکته.

(۳۲۶) د حضرت ابو حُمَيْد رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

ثُمَّ رَكَعَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ كَأَنَّهُ قَابِضٌ عَلَيْهِمَا وَوَتَّرَ يَدَيْهِ فَنَحَّاهُمَا عَنْ جَنْبَيْهِ.
(ترمذی ص۳۵/۱، ابوداؤد ص۱۱۴/۱ باب افتتاح الصلوٰة، مشکوٰة ص۷۵)

بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم رکوع او کړه نو خپل دواړه لاسونه ئے په خپلو دواړو زنګنونو باندِ کیخودل داسے چه دواړه زنګنونه ئے وریا نِ نیولی وُو او خپل دواړه لاسونه ئے لکه د لیندے (کمان)

د جبې پشان د دواړو لاسونو څنګلے اوږتے ئے د اړخونو نه لرے اوساتلے

(۳۲۷) د حضرت ابو مسعود انصاری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم لَا تُجْزِئُ صَلٰوةُ الرَّجُلِ حَتّٰى يُقِيْمَ ظَهْرَهٗ فِي الرُّكُوْعِ - (ابوداؤد ص۱۳۱/۱، ترمذی ص۳۵/۱، نسائی، ابن ماجه، مشکوٰة ص۸۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، د سړی مونځ نهٔ کافی کیږی تر څو چه په رکوع کښ خپله شا نیغه او برابره نکړی.

## در رکوع تسبیح

(۳۲۸) عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رضی اللہ عنہ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِجْعَلُوْهَا فِيْ رُكُوْعِكُمْ۔
(ترمذی ، ابو داؤد ج۱ ص۱۳۳ ، ابن ماجه مشکوٰة ص۸۲)

حضرت عُقبه رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی چه کله فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ (د خپل لوئی رب د نوم تسبیح کوه) نازل شونو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم اُوفرمائیل چه دا په خپله رکوع کښې وایئ یعنی په رکوع کښې سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْم وئیلو عمل شروع کړئ۔

(۳۲۹) حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہ فرمائی :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِذَا رَكَعَ اَحَدُكُمْ فَقَالَ فِيْ رُكُوْعِهٖ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ رُكُوْعُهٗ وَ ذٰلِكَ اَدْنَاهُ۔

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه کله تاسو رکوع کوئ او په رکوع کښې درے ځلے سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ اُووائی نو دده رکوع پوره شوه او دا د کمال کمه درجه ده۔

(ترمذی ج۱ ص۳۵ ، ابو داؤد ج۱ ص۱۳۶ ، ابن ماجه ، مشکوٰة ص۸۳)

**فائده :-** په رکوع او سجده کښې درے ځل تسبیح وئیل د کمال ادنیٰ درجه ده۔ پنځه ځل وئیل درمیانه درجه ده او اُووه ځل وئیل اعلیٰ درجه ده۔ (مرقات شرح مشکوٰة ج۲ ص۳۱۵)

## رکوع په آرام سره کول

د حضرت ابُوهریره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے چه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم یو سړی ته د مونځ تعلیم ورکولو او وے فرمائیل :

(۳۳۰) ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا
(بخاری ص۱۰۵ ج۱ او مسلم ص۱۷۰ ج۱)

بیا اطمنان سره رکوع کوه۔

## رکوع پوره نه کول ډیره خرابه غلا ده

د حضرت ابو قتاده رضی الله مرفوع حدیث دے:

(۳۳۱) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَسْوَأُ النَّاسِ سَرِقَةً اَلَّذِیْ یَسْرِقُ مِنْ صَلٰوتِهٖ قَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَکَیْفَ یَسْرِقُ مِنْ صَلٰوتِهٖ قَالَ لَا یُتِمُّ رُکُوْعَهَا وَلَا سُجُوْدَهَا۔ (مسند احمد، مشکوٰة ص ۸۳)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، ډیر خراب غل هغه دے چه په خپل مونځ کښې غلا کوی۔ صحابو عرض اوکړو، یارسول الله! مونځ کښې به څنګه غلا کوی؟ وے فرمائیل چه څوک د مانځه رکوع او سجدې پوره نکوی هغه د مانځه غل دے۔

## د رکوع نه پس تسمیع او تحمید وئیل

د حضرت ابوهریره رضی الله مرفوع حدیث دے:

(۳۳۲) کَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ قَالَ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْدُ۔ (بخاری ج۱ ص۱۰۹)

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم چه به کله سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ اُووئیلو نو وئیل به ئے اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْدُ۔

## مقتدی به صرف تحمید وائی

امام او منفرد دپه خو د حضرت ابوهریره رضی الله دپاسنی حدیث په بناء باندې تسمیع او تحمید دواړه وائی لیکن مقتدی په صرف تحمید وائی لکه چه د حضرت ابوهریره رضی الله دے راتلونکی حدیث نه ظاهریږی:

(۳۳۳) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَالَ الْاِمَامُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ۔

(بخاری ج۱ ص۱۰۹، مسلم ج۱ ص۱۷۶، مشکوٰة ص ۸۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله امام سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ اُووائی نو تاسو اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ اُووایئ۔

# سجدې ته د تللو په وخت مخکښې په زنګونو لاس ایخودل

(۳۳۴) د حضرت وائل بن حُجرؓ نه روایت دے:

قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ وَ إِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ۔ (ابوداؤد ج۱ ص۱۲۹، و ترمذی ج۱ ص۳۶ ونسائی وابن ماجه ومشکوٰة ص۸۴ وقال الترمذی ہذا الحدیث حسن وقال الحاکم صحیح علی شرط مسلم وصححه ابن حبان (مرقات شرح مشکوٰة ج۲ ص۳۴۴ طبع ملتان باب السجود وفضله والسعایه ص۱۹۳ جلد دوم)

حضرت وائل بن حُجر رضی الله عنه فرمائی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم اُولیدو چه کله به ئے سجده کوله نو زنګونه به ئے د لاسونو نه مخکښې په زمکه) ایخودل او چه سجدې نه به پاسیدو نو خپل لاسونه به ئے د زنګنونو نه اول اُوچتول۔

هم دغه مضمون مرفوع قوی حدیث (۳۳۵) د حضرت انسؓ نه دارقطنی او بیهقی او مستدرک حاکم کښې او موقوف صحیح حدیث۔

(۳۳۶) د حضرت عمرؓ په مُسند د عبدالرزاق، ابن المنذر، طحاوی کښې هم روایت دے۔ (معارف السنن شرح ترمذی ج۳ ص۳۳ وغیره۔)

**فائده:**- بعض مرفوع احادیثو کښې سجدې ته د تللو په وخت د زنګونو نه مخکښې لاس په زمکه ایخودلو ذکر دے۔ د محققینو په نزد دا پاس ذکر شوے حدیث د عذر په حالت باندې محمول دے۔ (معارف السنن شرح ترمذی ج۳ ص۳۱)

## د سجدے فرضیّت

د الله پاک ارشاد دے:

(۳۳۷) وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ ۝ (العلق پ۳۰ ع۱۹)

او سجده کوئ او (د الله پاک) نزدیکت حاصل کړئ۔

## سجده د الله پاک د نزدیکت ذریعه ده

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۳۳۸) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْرَبُ مَا يَكُوْنُ الْعَبْدُ مِنْ رَّبِّهٖ وَهُوَ سَاجِدٌ (مسلم ط ۱۹۱/۱، مشکوٰة ص ۸۴)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه بنده خپل رب ته ډیر قریب او نزدیکت د سجدے په حالت کښ حاصلیږی۔

## د سجدے شکل او آداب

د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه نه روایت دے:

(۳۳۹) اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ..... فَلَمَّا سَجَدَ سَجَدَ بَيْنَ كَفَّيْهِ۔

نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه به سجده کوله نو د دواړو لاسونو مینځ کښ به ئے کوله۔

حضرت عبد الله بن مالک ابن بُجَینه رضی الله عنه فرمائیلی دی:

(۳۴۰) كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَجَدَ فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتّٰى يَبْدُوَ بَيَاضُ اِبْطَيْهِ۔ (بخاری و مسلم ج ۱۹۴/۱، مشکوٰة ص ۸۳)

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم چه به کله سجده کوله نو خپل دواړه لاسونه به ئے بېله لرے ساتل (د اړخونو نه) تر دے چه د ترخونو سپین والے به ئے ښکاره شو۔

(۳۴۱) د حضرت براء رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَجَدْتَّ فَضَعْ كَفَّيْكَ وَارْفَعْ مِرْفَقَيْكَ۔ (مسلم ج ۱۹۴/۱، مشکوٰة ص ۸۳)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله ته سجده کوے نو خپل لاسونو تلی په زمکه کیږده او خپلے څنګلے اوچتے کړه۔

## په اووه اندامونو سجده کول

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلی دی:

(۳۴۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمِرْتُ اَنْ اَسْجُدَ عَلٰى سَبْعَةِ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه ما ته حکم شوے دے چه په اووه اندامونو

أَعْظُمٍ عَلَى الْجَبْهَةِ وَالْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ وَأَطْرَافِ الْقَدَمَيْنِ۔
(بخاری ص۱۱۲ ج۱، مسلم ص۱۹۳ ج۱، مشکوٰۃ ص۸۳)

سجده اوکړم۔ په تندی او دواړو لاسونو او دواړو زنګنونو او دواړو خپو په طرفونو یعنی سجده دِ دا سے اوشی چه دا اندامونه په زمکه لګیدلی وی۔

## دسجدے تسبیح

(۳۴۳) عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رضی اللہ عنہ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى قَالَ رَسُولُ اللهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِجْعَلُوهَا فِي سُجُودِكُمْ۔ (ترمذی، ابوداود ص۱۳۳ ج۱، ابن ماجه، مشکوٰۃ ص۸۳)

حضرت عقبه بن عامر رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی چه کله دا ایت: سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى (دخپل اوچت پروردګار تسبیح کوه) نازل شو نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم اوفرمائیل، دا خپله سجده کښ وایئ۔ یعنی په سجده کښ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى وئیلو باندِ عمل شروع کړئ۔

(۳۴۴) دحضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُولُ اللهِ صلی اللہ علیہ وسلم وَإِذَا سَجَدَ فَقَالَ فِي سُجُودِهٖ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ سُجُودُهٗ وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ۔
(ترمذی ص۳۵ ج۱، ابوداود ص۱۳۶ ج۱، ابن ماجه، مشکوٰۃ ص۸۳)

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه د تاسو نه څوک سجده کوی نو خپله سجده کښ دِ درے ځله سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى وائی نو دهغه سجده مکمل شوه او دا دکمال کمه درجه ده۔

## رکوع، سجده، قومه او جلسه په اطمینان سره کول

(۳۴۵) دحضرت ابُوهریره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث کښ دی چه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم یو باندیچی ته دمونځ تعلیم ورکولو، وے فرمائیل:

ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا

بیا په ارام سره رکوع کوه۔ بیا اودریږه

ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَعْتَدِلَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا ثُمَّ افْعَلْ ذٰلِكَ فِي صَلٰوتِكَ كُلِّهَا۔ (بخاری ج۱ ص۱۰۵، مسلم ج۱ ص۱۷۰، مشکوٰۃ ص۷۵)

تر دے چه نیغ اُودریږے بیا په آرام سره سجده اُوکړه بیا سر اُوچت کړه تر دے چه په آرام سره کینے بیا خپل مونځ مکمل کړه په دے طریقے سره۔

## د ښځے د سجدے طریقه

ښځه دِ خُلاؤ سجده نکوی بلکه خپله خیټه دِ خپلو پښو نو سره جُختنه کړی او سجده دِ اُوکړی۔

(۳۲۶) د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما مرفوع حدیث دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ښځے د مانځه باره کښې اُوفرمائیل:

وَإِذَا سَجَدَتْ أَلْصَقَتْ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا كَأَسْتَرِ مَا يَكُونُ لَهَا۔ (کنز العمال ج۱۱ ص۱۴۹، بیهقی، کامل ابن عدی)

چه ښځه کله سجده کوی نو خپله خیټه به د خپلو پښو نو سره جُختله ساتی چه دا دے د پاره د زیاتے پردے سبب دے۔

(۳۲۷) د حضرت علی کرم الله وجهه ارشاد دے:

إِذَا سَجَدَتِ الْمَرْأَةُ فَلْتَضُمَّ فَخِذَيْهَا۔ (کنز العمال)

چه کله ښځه سجده کوی نو دوا ړه پښو نه دِ یوځائے کړی۔

د دے احادیثو نه دا اُصول واضحه شو چه ښځے د پاره د مونځ هغه طریقه سنت ده چه ډیره د ستر او پردے سبب وی۔ د اسلام فُقهاءِ کرامو د دے اُصولو په وجه د ښځے او د سړی مونځ کښې فرق بیان کړیدے لکه چه د فقه حنفی مشهور او معروف کتاب هدایه ج۱ ص۹۲ کښې دی:

وَالْمَرْأَةُ تَنْخَفِضُ فِي سُجُودِهَا وَتُلْزِقُ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا لِأَنَّ

او ښځه دِ سجده جُختنه کوی او خپله خیټه دِ خپل پښو نو سره یوځائ کړی ځکه

ذٰلِكَ اَسْتَوَى لَهَا۔ چه واده دپاره د پرزیات د پېړ دے سبب دے۔

## د دواړو سجدو په مینځ کښ کسه خپه غوړول او کیناستل

حضرت عائشه رضي الله عنها د دوئ په باره کښ فرمائي:

(۳۴۸) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْرُشُ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى۔ (مسلم ج۱ ص۱۹۴، مشکوٰة ص۷۵)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به خپله کسه خپه غوړوله او ښئ خپه به ئے اودروله۔

(۳۴۹) د حضرت ابُوحُمَيْدٍ السَّاعِدِي رضي الله عنه مرفوع حدیث دے:

وَيُثْنِيْ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَيَقْعُدُ عَلَيْهَا۔ (ابوداود ج۱ ص۱۰۴ باب افتتاح الصلوٰة)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به خپله کسه خپه تاؤ کړه او په هغې به کیناستلو۔

## د دویمې سجدې نه پورته کیدو په وخت اول لاسونه پیا زنګنونه اوچتول

(۳۵۰) د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه مرفوع حدیث دے،

وَاِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ۔ (ابوداود ج۱ ص۱۲۲، ترمذی ج۱ ص۳۶، نسائی وابن ماجه، مشکوٰة ص۸۴)

او نبی کریم صلی الله علیه وسلم به چه کله د سجدې نه پاسیدو نو خپل دواړه لاسونه به ئے د زنګنونو نه مخکښ اوچتول۔

## د دویمې سجدې نه پس نیغ اودریدل او نۀ کیناستل

(۳۵۱) د حضرت ابُوحُمَيْدٍ رضي الله عنه مرفوع حدیث دے:

فَسَجَدَ ثُمَّ كَبَّرَ فَقَامَ وَلَمْ يَتَوَرَّكْ۔ (ابوداود ج۱ ص۱۱۷)

رَسول الله صلی الله علیه وسلم سجده اوکړه او تکبیر ئے اووئیلو او اودریدو او تورک ئے اونکړو

یعنی د دویمې سجدې نه پس نۀ دے ناست۔"

(۳۵۲) د حضرت ابُومالک اشعری رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

فَسَجَدَ ثُمَّ كَبَّرَ فَانْتَهَضَ قَائِمًا — پس سجده ئے اُوکړه او تکبیر ئے اُووئیلو او سیدها نیغ اُودریدو۔

(مسند امام احمد صفحه ۳۴۳ ج۵ واسناده حسن)

(۳۵۳) د حضرت ابُوهُریره رضی اللہ عنہ په مرفوع حدیث کښں دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یو اعرابی ته د مونځ تعلیم ورکولو او وے فرمائیل:

ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَسْتَوِيَ قَائِمًا۔ — بیا په آرام سره سجده کوه او بیا سر اُوچت کړه تردے چه نیغ اُودریږے

(بخاری صفحه ۹۸۶ ج۲ باب اذا حنث ناسیا فی الایمان)

(۳۵۴) حضرت نعمان رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

أَدْرَكْتُ غَيْرَ وَاحِدٍ مِّنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ فِي أَوَّلِ رَكْعَةٍ وَالثَّالِثَةِ قَامَ كَمَا هُوَ وَلَمْ يَجْلِسْ۔ — ما ډیر صحابهٔ کرامؓ اُولیدل چه کله به هغوی د اول او دریم رکعت د سجدے نه سر اُوچت کړو نو نیغ به اُودریدو او نه به کیناستو۔

(مصنف ابن ابی شیبة صفحه ۳۹۵ ج۱ باسناده حسن)

د ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم عمل په احادیثو کښں هم داسے نقل شویدے چه هغوی به د دواړو سجدے نه پس نیغ اُودریدل او جلسهٔ اِستراحت به ئے نه کوله۔ په دے باره کښں (۳۵۵) نه تر (۳۶۱) پورے د حضرت عُمر، حضرت علی، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن زُبَیر او حضرت ابُوسعید خُدری رضی الله عنهم احادیث او آثار په مصنف ابن ابی شیبة صفحه ۳۹۴ ج۱، نصب الرایه صفحه ۳۸۹ ج۱، فتح القدیر صفحه ۳۰۸ ج۱ کښں اُوګورئ۔

حضرت مولانا عبد الحیؒ لکھنویؒ په السعایه ج۲ ص۱۷۲ بانڈے د علامه ابن تیمیه حنبلیؒ قول نقل کړیدے :

إِنَّ الصَّحَابَةَ أَجْمَعُوا عَلَى تَرْكِ جَلْسَةِ الْإِسْتِرَاحَةِ۔ یعنی صحابه کرام رضی الله عنهم د جلسه استراحت په ترک بانڈے متفق دی.

**فائده:-** په بعض احادیثو کښی د جلسه استراحت ذکر راغلے دے پاس ذکر شوی احادیثو او شواهدو په وجه هغه د عذر (په حالت د بڅوړوالی وغیره) بانڈے محمل دے - علامه ابن قدامه په المغنی ج۱ ص۲۶۶ کښی او محدث ماردینی په الجواهر النقی ج۲ ص۱۲۵ کښی او نورو ډیرو محققینو هم دا توجیه کړیده - او بعض علماء کرامو دا په جواز بانڈے محمل کړیدے - (مرقات ج۲ ص۲۵۷)

## دویم رکعت هم د اول رکعت پشان ادا کول پکار دی

د حضرت ابو حمید ساعدی رضی الله عنه په مرفوع حدیث کښی د یو رکعت نه په تفصیل سره طریقه بیانولو نه پس دا الفاظ ذکر دی :

(۳۶۲) ثُمَّ يَصْنَعُ فِي الْأُخْرَى مِثْلَ ذٰلِكَ۔ بیا دویم رکعت کښی هم داسے کوه - (ابو داؤد ص۱۱۳ ج۱، باب افتتاح الصلوٰة)

## دویم رکعت کښی ثناء او تعوذ نشته دے

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

(۳۶۳) كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَهَضَ مِنَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ اسْتَفْتَحَ الْقِرَاءَةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ وَلَمْ يَسْكُتْ۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله به دویم رکعت ته پاسیدو نو د: "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ" نه به ئے قرات شروع کولو (او ثناء وغیره دیاره) به نه چپ کیدو.

(مسلم ج۱ ص۲۱۹ باب مایقال بین تکبیرة الاحرام والقراءة ، مشکوٰة ص۷۸)

## دوئیم رکعت کښې د فاتحه سره سورت یو ځائ کول

(۳۶۴) د حضرت ابُو قتادة رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

کَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ یَقْرَأُ فِی الظُّهْرِ فِی الْاُولَیَیْنِ بِاُمِّ الْکِتَابِ وَسُوْرَتَیْنِ۔ (بخاری ج۱ ص۱۰۷ ، مسلم ج۱ ص۱۸۵ ، مشکوٰة ص۷۹)

یعنی نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به په رومبی دواړو رکعتونو کښې فاتحه او سورت وئیلو۔

## دَقعدے طریقه

د قعدے صورت او شکل دا دے چه ښی خپه به ولاړه وی او کسه خپه به اُغوړوے او ورباندِ به کینے۔

(۳۶۵) د حضرت عائِشه صِدِّیقه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے :

وَکَانَ یَقُوْلُ فِی کُلِّ رَکْعَتَیْنِ التَّحِیَّةَ وَکَانَ یَفْرِشُ رِجْلَهُ الْیُسْرٰی وَیَنْصِبُ رِجْلَهُ الْیُمْنٰی۔ (مسلم ج۱ ص۱۹۴ ، مشکوٰة ص۷۵)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به په هر دوؤ رکعتو باندِ اَلتَّحِیَّات وئیلو او خپله کسه خپه به یے غوړوله او ښئ خپه به یے ولاړه ساتله۔

دَدے حدیث اطلاق او عموم دواړو قعدو ته شامل دے چه مطلقًا په هره قعده کښې ښئ خپه ولاړه ساتل پکار دی او کسه خپه غوړول پکار دی:

(۳۶۶) د حضرت وائل بن حُجر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

فَلَمَّا جَلَسَ یَعْنِیْ لِلتَّشَهُّدِ اِفْتَرَشَ رِجْلَهُ الْیُسْرٰی ...... وَنَصَبَ رِجْلَهُ الْیُمْنٰی۔

پس کله چه به رسول الله صلی الله علیه وسلم کښېناستو د پاره کینا ستو نو خپله کسه خپه به یے غوړوله ..... او خپله ښئ خپه به یے اُودرَوله

(ابوداؤد، نسائی، ابن ماجه، ترمذی ص۳۸/۱۴۰)

دا حدیث حسن صحیح دے۔ (ترمذی ص۳۸/۱۴۰)

(۳۶۷) د حضرت رفاعه بن رافع رضی الله عنه مرفوع حدیث دے چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو اعرابی ته د مونځ تعلیم ورکولو کښې ارشاد اُوفرمایئ:

فاذا رفعت فاقعد علیٰ فخذك الیسریٰ۔ | چه کله ته د سجدے نه سر اُوچت کړے نو خپل کس پتون باندې کینه۔

(ابوداؤد ص۱۳۲/۱۲۰، مسند امام احمد ص۳۴۰/۴)

قاضی شوکانی رح الاوطار کښې فرمائیلی دی:

لا مطعن فی اسناده | ددے حدیث په سند باندې هیڅ اعتراض نشته۔

(۳۶۸) د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دے:

انما سنة الصلوٰة ان تنصب رجلك الیمنیٰ وتثنی الیسریٰ۔ | دمانځه سنت هم دا دی چه ته خپله ښی خپه اُودروے او کسه خپه اُوغوړوے۔

(بخاری ص۱۱۴/۱، باب سنة الجلوس فی التشهد۔)

دا حدیث په نسائی ص۱۷۳/۱ کښې په صحیح سند سره دا الفاظ روایت شوی دی:

من سنة الصلوٰة ان تنصب القدم الیمنیٰ والجلوس علی الیسریٰ | دا دمانځه د سنتونه دی چه ښی خپه به اُودروے او په کسه خپه به کینې۔

فائده:- صحابی چه د سنت لفظ اُووائی نو د جمهور علماؤ په نزد هغې نه مرفوع حدیث مراد وی۔ (شرح نخبة الفکر ص۹۶)

فائده:- په بعض احادیثو کښې د تورک لفظ راغلے دے۔ وتورك د دوه طریقے مشهورے او معلومے دی۔

ا:- ښئ ښپه اُودرول او کسه ښپه ښی طرف ته ویستل

کُناتو کیناستل۔

۲:۔ ښځۍ اوکسه دواړه څپے ښی طرفته ویستل او په کُناتو کیناستل

(معارف السنن صـ۹۵ جلد دوم)

نو داتوړك دبیمارۍ او عُذر په حالت باندِ حمل دے لکه څنګه چه دے حدیث نه ثابتیږی۔

(۳۶۹) حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمائیلی دی چه په مانځه کښ د ناستے سُنّت طریقه اِفتراش دے۔ (اَنْ تَنْصِبَ رِجْلَكَ الْيُمْنىٰ وَ وَيُثْنِيَ الْيُسْرىٰ) نو یو سړی تپوس اوکړو چه تا سو خو توړك او تربّع کوئ۔ حضرت ابن عُمر رضی الله عنه جواب ورکړو: اِنَّ رِجْلَایَ لَا تَحْمِلَانِیْ (څما ښپے ما نشی اُوچتولے۔) (بخاری ج۱ صـ۱۱۴، موطا امام مالک صـ۲۷)

یعنی څۀ معذوریم په ښپو نۀ شم کیناستے څکه توړك کوم۔ په مؤطا امام مالک کښ د حضرت ابن عمر نه دا الفاظ مروی دی:

اِنَّمَا اَفْعَلُ هٰذَا مِنْ اَجْلِ اَنِّیْ اَشْتَکِیْ۔ څۀ بیماریم څکه توړك کوم۔

## په مانځه کښ د ښځے سُنّت طریقے سره ناسته

ښځه چه کله هم مانځه کښ کینی نو د جمهورو علماؤ (حنفیه مالکیه حنبلیه) په نزد توړك به کوی۔

(۳۷۰) د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دے:

اِنَّهٗ سُئِلَ کَیْفَ کَانَ النِّسَاءُ یُصَلِّیْنَ عَلٰی عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ کُنَّ یَتَرَبَّعْنَ۔

(مصنف ابن ابی شیبة و مسند ابی حنیفة)

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه تپوس اُوشو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ به ښځو مونځ څنګه کولو؟ حضرت ابن عمر اُوفرمائیل چه ښځو به تربّع او توړك کولو۔

ترتیب هم د تورک په شکل دے ۔ (اوجز المسالک ص ۲۵۸/ ج۱)

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه حدیث په ص ۱۱۶ کنز العمال او بیهقی وغیره کښ تیر شوے دے چه د هغے الفاظ دا دی: "وَإِذَا سَجَدَتْ أَلْصَقَتْ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا كَأَسْتَرِ مَا يَكُونُ لَهَا۔"

چه د دینه دا اصول را اوځی چه ښځے د پاره په مانځه کښ هغه شکل او صورت سنت دے چه ډیر زیات پرده ناک وی۔

د اسلام فقهائے کرامو دلته هم د دے اصولو په بنا دا د اخبرے کړیدی۔ د فقه حنفی مشهور کتاب "هدایه ص ۹۳/ ج۱" کښ دی:

وَإِنْ كَانَتْ امْرَأَةٌ جَلَسَتْ عَلَى أَلْيَتِهَا الْيُسْرَى وَأَخْرَجَتْ رِجْلَيْهَا مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ لِأَنَّهُ أَسْتَرُ لَهَا۔

که ښځه وی په خپل کس کناټو به کینی او خپلے دواړه خپے به ښی طرفته اوباسی ځکه چه دے د پاره زیات ډیر پردے خیز دے۔

## په قعده کښ ښے لاس په ښی پتون او کس لاس په کس پتون کیږدی

(۳۷۱) د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى ..... وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم به قعده کښ خپل ښے لاس په ښی پتون ...... او کس لاس په کس پتون باندے ایخودلو۔

(مسلم ص ۲۱۶/ ج۱، مشکوٰة ص ۸۵)

(۳۷۲) د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

وَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُسْرَى

رسول الله صلی الله علیه وسلم به قعده کښ خپل ښے تلے په ښی پتون او کس تلے په کس

عَلٰی فَخِذِهِ الْیُسْرٰی۔ (مسلم ص ۱۳۲ ج ۱) پښتون ایخودلو۔

دوے مضمون مرفوع حدیث (۲۴۳) دحضرت عاصم بن کُلَیبؒ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ جَدِّہٖ نه هم مروی دے۔ (ترمذی ص ۱۹۸ ج ۲ کتاب الدعوات)

**فائده:**۔ په بعض احادیثوکښ په زنګنه توباندِ لاس ایخودل ذکر شوی دی نو هغه په جواز باندِ حمل دی۔

## دتشهد الفاظ

(۲۴۴) دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مرفوع حدیث کښ دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به په کوم اهتمام سره دقرآن مجید دسورت تعلیم ورکوؤلو هم دغه اهتمام سره به ئے ماته دتشهد تعلیم راکړیید ے:

وَاِذَا قَعَدَ اَحَدُکُمْ فِی الصَّلٰوةِ فَلْیَقُلْ اَلتَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّیِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَکَاتُهٗ، اَلسَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلٰی عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِیْنَ ○ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ۔ چه په تاسوکښ څوك په مانځه کښ قعده کوی نو هغه دِ وائی اَلتَّحِیَّاتُ الخ (بخاری ص ۱۱۵ ج ۱، مسلم ص ۱۷۳ ج ۱ باب التشهد فی الصلوٰة)

**فائده:**۔ په بعض صحیح احادیثوکښ دتشهد نور الفاظ هم مروی دی اوهغه جائز هم دی لیکن دا پاسنی الفاظ غوره دی ځکه چه په اتفاق دمحدثینو دتشهد په باره کښ دټولونه زیات صحیح حدیث دحضرت ابن مسعودؓ دا ذکر شوے حدیث دے۔ داکثرو صحابو او تابعینو هم په دے حدیث باندِ عمل دے۔ امام ترمذی رحمة الله علیه په "باب ماجاء فی التشهد ص ۳۸ ج ۱ باندِ دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه پاس ذکرشوے حدیث نقل کوی اولیکی:

وَهُوَ اَصَحُّ حَدِیْثٍ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ دتشهد پاره کښ دا دټولونه زیات

فِي التَّشَهُّدِ وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ۔

صحیح مرفوع حدیث دے۔ د صحابو او تابعینو نه اکثرو اهلِ علمو هم په دے باندے عمل کړیدے۔

علامه نووی شافعیؒ د شرح مسلم ص ۱۷۲ ج ۱ باندے لیکی:

وَقَالَ أَبُوحَنِيْفَةَ وَأَحْمَدُ وَجُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ وَأَهْلُ الْحَدِيثِ تَشَهُّدُ ابْنِ مَسْعُودٍ أَفْضَلُ لِأَنَّهُ عِنْدَ الْمُحَدِّثِيْنَ أَشَدُّ صِحَّةً۔

د امام ابوحنیفه، امام احمد او جمهور فقهاء او محدثین په نزد د حضرت ابن مسعودؓ روایت والا تشهد افضل دے ځکه چه دا د محدثینو په نزد د ټولو نه زیات صحیح دے۔

حضرت مولانا عبدالحیؒ لکهنویؒ په السعایه ص ۲۲۵، ۲۲۶ ج ۲ باندے د دے پاس ذکرشوی تشهد په ترجیح کښ یوولس وجے ذکر کړیدی۔

## په اوله قعده کښ صرف تشهد پورے وئیل دی

(۳۲۵) د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

عَلَّمَنِي رَسُوْلُ اللهِ ﷺ التَّشَهُّدَ فِي أَوَّلِ الصَّلٰوةِ وَآخِرِهَا ۔۔۔۔ ثُمَّ إِنْ كَانَ فِي وَسْطِ الصَّلٰوةِ نَهَضَ حِيْنَ يَفْرُغُ مِنْ تَشَهُّدِهٖ وَإِنْ كَانَ فِي آخِرِهَا دَعَا بَعْدَ تَشَهُّدِهٖ بِمَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَدْعُوَ ثُمَّ يُسَلِّمُ۔ (مسند امام احمد ص ۴۵۹ ج ۱)

رسول الله ﷺ ما ته د تشهد تعلیم راکړو۔ د مونځ په اول وسط کښ او د دے په آخر کښ هم ۔۔۔۔ بیا به چه حضرت ابن مسعودؓ که چرے د مانځه په مینځ کښ وُو نو د تشهد نه فارغیدو سره زر به اُودریدو او که چرے دے به په آخر کښ وُو نو د تشهد نه پس چه څومره به د الله تعالیٰ خوښه وه نو دُعا به ئے کوله بیا به ئے سلام ګرځولو۔"

## په قعده کښې په مسواکه ګوتې سره اشاره کول:

په تشهد کښې په مسواکه ګوتې سره اشاره کول د ځلورو واړو امامانو په اتفاق سره سُنت ده او صحیح احادیثو نه ثابته ده۔ د اشارې مختلف طریقې د احادیثو نه ثابت دي او ټولې جائز دي د احنافو عالمانو په نزد بهتره طریقه داده چه کله کلمه شهادت ته اُورسیږي نو د ښي لاس وړه او ورسره نزدې ګوتې بندې کړه، د میځ او ګټې یعنی غټې ګوتې نه به حلقه جوړه کړې او مسواکه ګوته به کهلاؤ پریږدې۔ په لَآ اِلٰهَ سره به ګوته اُوچته کړې او په اِلَّا اللّٰهُ بانډې به ئې کیږدې او حلقه به د قعدې ختمیدو پورې باقي وي. مونځګذاري چه کله په ژبه د الله تعالی د یَو والي اقرار کوي او وائي چه: اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ نو د دهٔ زړهٔ د توحید د یقین نه ډک شي نو په مسواکې ګوتې سره هم توحید طرفته اشاره کول پکار دي:

(۳۷۶) د حضرت وائل بن حُجر رضی الله عنه مرفوع حدیث کښې دي:

وَقَبَضَ ثِنْتَيْنِ وَحَلَّقَ وَاَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ۔ (ابوداؤد ص۱۴۲ ج۱ باب کیف الجلوس فی التشهد، مسند دارمی، مشکوٰة ص۸۵)

او رسول الله صلی الله علیه وسلم دوه ګوتې بندې کړې او حلقه ئې جوړه کړه او مسواکې سره ئې اشاره اُوکړه۔

مشکوٰة کښې: ثُمَّ رَفَعَ اِصْبَعَهٗ الفاظ دي (بیا ئې خپله ګوته اُوچته کړه)

حضرت امام محمد رحمة الله علیه په موطا ص۱۰۶ کښې د اشارې بالمسبحه په ثبوت کښې د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما مرفوع حدیث نقل کوي او لیکي

وَبِصَنِيْعِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم نَاْخُذُ وَهُوَ قَوْلُ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رح۔

او مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم عمل اخلو او د امام ابوحنیفه رح قول هم دادے

امام محمدؒ د اشارے مسئله "کتاب المبسوط" کښ لیکی، حضرت امام ابویوسفؒ هم د اشارے مسئله "الامالی" کښ ذکر کړیده۔

(معارف السنن ص۹۸ جلد۳)

**فائده:-** ۳۴۷ نه تر ۳۸۸ پورے د اشارة بالمسبحة په ثبوت کښ دولس ۱۲ مرفوع احادیث روایت شویدی:

۱:- د حضرت ابن عمرؓ حدیث مسلم ص۲۱۶/۱۲۰، نسائی ص۱۴۳/۱۲۰، ترمذی باب ماجاء فی الاشارة ص۳۹/۱۲۰ کښ دے۔

۲:- د حضرت عبد الله بن زبیرؓ حدیث په مسلم ص۲۱۶/۱۲۰، نسائی ص۱۴۳/۱۲۰ باب الاشارة بالاصبع فی التشهد، ابوداؤد ص۱۴۹/۱۲۰، مشکوٰة ص۸۵ کښ دے۔

۳:- د حضرت وائل بن حجرؓ حدیث په ابوداؤد ص۱۴۵/۱۲۰، نسائی ص۱۴۳/۱۲۰، ابن ماجه، مشکوٰة ص۸۵ کښ دے۔

۴:- د حضرت ابوهریرهؓ حدیث په ترمذی او نسائی کښ دے۔

۵:- د حضرت سعدؓ حدیث په نسائی کښ دے۔

۶:- د حضرت نمیرؓ حدیث په ابوداؤد، نسائیؒ او ابن ماجه کښ دے۔

۷:- د حضرت ابوحمیدؓ حدیث په ترمذی کښ دے۔

۸:- د حضرت ابن عباسؓ حدیث په بیهقی کښ دے۔

۹:- د حضرت معاذؓ حدیث په طبرانی کبیر کښ دے۔

۱۰:- د حضرت عبد الرحمن بن ابزیؓ حدیث په مسند عبد الرزاق، طبرانی کبیر کښ دے۔

۱۱:- د حضرت خفافؓ حدیث مسند احمد او بیهقی کښ دے۔

۱۲:- د حضرت اسامه بن الحارث حدیث په طبرانی کښ دے۔

علامه عبد الحیؒ فرمائیلی دی:

وَالْاَخْبَارُ فِي الْاِشَارَةِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَصْحَابِهٖ تَكَادُ اَنْ تَكُوْنَ مُتَوَاتِرَةً. (السعایه ص۲۱۶ ج۲)

او د اِشاره بالمسبحه په ثبوت کښې احادیث او آثار حدِ تواتر ته نزدے دی۔

محقق ابن همام په فتح القدیر شرح هدایه ص۲۷۲ ج۱ باندې د اِشارے نه انکارکوُلو په رَد کښې لیکی:

وَهُوَ خِلَافُ الدِّرَايَةِ وَالرِّوَايَةِ۔

و د اشارے نه نفی او انکار کوُل دَ درایت او روایت نه خلاف دی۔

دفقه حنفی لاندې یعنی مُعتبر کتابونو کښې د اشاره بالمسبحه د ثبوت ذکر شوے دے: فتاوی التاتارخانیه، النوازل لابی اللیث، الذخیره، الغنیة، الحلیة، فتح القدیر، بحر الرائق، نهر الفائق، الحاشیه، المجتبیٰ الشامی، مواهب الرحمان، البرهان، المحیط، شرح مجمع البحرین، مراقی الفلاح، در البحار، غرر الافکار، البدائع، الملتقط، معراج الدرایة، الظهیریة، النهایة وغیر ذلك (السعایه ص۲۱۶، ۲۱۹ ج۲، معارف السنن ج۳)

**تنبیه** بعض متاخرین حنفیه د "اشاره بالمسبحه" نفی کړیده او دا عُذر رسے پیش کړیدے چه د اشارے په طریقه کښې احادیث مضطرب دی لیکن د احنافو محققینو دے رد کړیدے او د دے په ثبوت کښې لئے مستقل رسالے لیکلی دی۔ بهرحال صحیح مرفوع احادیثو نه اشاره ثابته ده۔ او په دے باندې ائمه اربعه متفق دی امام ابو حنیفه سره صاحبین هم د دے قائل دی۔ پاتے شوه د اشارے په طریقه کښې د روایاتو اختلاف او اضطراب نو د هغے حل دا دے چه د صحیح احادیثو نه ثابت شوے طریقے ټولے جائز دی۔ اضطراب هلته کښې مضر او د عمل نه مانع وی کوم ځائے چه تطبیق او ترجیح

وغیره ممکن نهٔ وی لیکن ولته مختلفو وختونو باندِ حمل دی. علامه قاری حنفیؒ مرقات شرح مشکوٰۃ ص۳۲۸ج۲ باندِ د اشارے مختلفے طریقے نقل کړیدی او د امام رافعیؒ قول نقل کوی :-

اَلاَخبارُ وَرَدَت بِهَا جَمِیعًا وَکَاَنّهٗ علیه الصلوٰۃ والسلام کَانَ یَصنَعُ مَرَّۃً هٰکَذَا وَمَرَّۃً هٰکَذَا۔

یعنی د اخبارو او احادیثو نه د اتوله طریقے ثابت دی گویا رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله داسے عمل کولو او کله هغسے۔

نو څنګه چه د رفع یدین په طریقه کښ د روایاتو او احادیثو اختلاف او اضطراب د عمل نه مانع نهٔ دے همدا رنګ دا اختلاف هم د عمل نه مانع کیدل نهٔ دی پکار۔

حضرت مجدد الف ثانی رحمة الله علیه هم په خپل مکتوبات کښ د احادیثو د اختلاف په وجه د اشارے نفی کړیده۔ لیکن د دوی بعض ځامنو او بعض خلیفه گانو د اِشارے په ثبوت کښ مستقل رسالے لیکلی دی او سنهٔ قوت سره ئے اشارۃ ثابته کړیده۔

د اشارے په ثبوت کښ مستقل رسالے لیکلو والا په حنفیانو کښ د مشکوٰۃ شارح علامه قاری حنفیؒ، شامی، د کنز العمال مصنف شیخ علی متقیؒ، قاضی ثناء الله پانی پتیؒ او د مجدد الف ثانیؒ ځوئے شیخ محمد صادقؒ او دویم ځوئ شیخ محمد سعیدؒ هم شامل دے۔

شیخ عبد الحق محدث دهلویؒ شارح مشکوٰۃ، شیخ عبد الله سندهیؒ او محقق ابن الهمامؒ شارح د هدایه د اشارے په قائلینو کښ اول دی. د خپل دور د ډیر لوئے محدث حضرت مولانا محمد یوسف بنوریؒ فرمائیلی دی چه په دے مسئله کښ لیکلے شوے تقریبًا دیرش رسالے ما ته معلومے دی۔

**نوټ:-** د دے اهم مسئلے د تفصیل او تحقیق دپاره د مولانا عبد الحی لکهنوی السعایه ص۲۱۵/ج۲، ص۲۲۱/ج۲ او د حضرت مولانا محمد یوسف بنوری معارف السنن شرح ترمذی ص۹۷/ج۳ نه تر ص۱۰۳/ج۳ پورے اُوګورئ۔

## اول لاس کهلاؤ کیږده د اشارے په وخت کوتے بندے کړه

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۳۸۹) إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلٰوةِ وَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى وَقَبَضَ اَصَابِعَهٗ كُلَّهَا وَاَشَارَ بِاِصْبَعِهِ الَّتِيْ تَلِي الْاِبْهَامَ۔ (ابوداؤد ص۱۴۲/ج۱، مسلم ص۲۱۶/ج۱)

چه کله به نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مانځه کښ کیناستو نو خپل ښی لاس به ئے خپل ښی پتون باندے کیخودو او خپلے ټولے کوتے به ئے بندے کړے او د شهادت په کوته به ئے اشاره اُوکړه۔

محدث ابن الهمام په فتح القدیر شرح هدایه ص۲۷۲/ج۱ کښ فرمائیلی دی چه ښی لاس په پتون ایخودل او ګوتے بندول په یو وخت ممکن نه دی. نو په دیکښ د تطبیق صورت دا دے چه اول به لاس کهلاؤ کیږدی بیا د اشارے په وخت به کوتے بندے کړے۔

(۳۹۰) د حضرت عاصم بن کلیب عن ابیه عن جده مرفوع حدیث دے:

وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى وَقَبَضَ اَصَابِعَهٗ وَبَسَطَ السَّبَّابَةَ وَهُوَ يَقُوْلُ يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ۔ (ترمذی کتاب الدعوات ص۱۶۸/ج۲)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل ښی لاس په خپل ښی پتون باندے کیخودو او خپلے کوتے ئے بندے کړے او د شهادت کوته ئے کهلاؤ کړه او دا دعائے اُو وئیله: "يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ" اے د زړونو اړونکیه! ځما زړه خپل دین باندے مضبوط کړه۔"

دا دے حدیث نه معلومه شوه چه نبی کریم ﷺ به دُعا پورے کوتے بندے ساتلے۔ (السعایه ص۲۲۱ ج۲)

## داشارے نه بغیر گوته خوزوَل نهٔ دی پکار

(۳۹۱) د حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُشِيرُ بِإِصْبَعِهِ إِذَا دَعَا وَلَا يُحَرِّكُهَا۔ (ابوداؤد ص۱۴۲ ج۱، باب الاشارة فی الصلوة، نسائی)

نبی کریم ﷺ چه به کله دُعا کوُله (تشهد به ئے وئیلو) نو خپلے گوتے سره به ئے اشاره کوُله او خوزوَله به ئے نهٔ۔

محدث نووی رحمه الله فرمائی۔

رواه ابوداؤد باسناد صحیح۔ (شرح المهذب ص۴۵۴ ج۳)

ابوداؤد دا په صحیح سند سره روایت کړیدے۔

(۳۹۲) د حضرت وائل بن حُجر رضی الله عنه مرفوع حدیث کښ دی:

ثُمَّ رَفَعَ إِصْبَعَهُ فَرَأَيْتُهُ يُحَرِّكُهَا۔ (نسائی ص۱۴۲ ج۱، دارمی، مشکوٰة ص۸۵)

بیا نبی کریم ﷺ گوته اُوچته کړه نو ما لیدل چه گوته ئے خوزوَله۔

په دوارو روایتونو کښ تطبیق دا دے چه د تحریک نه د اشارے حرکت مراد دے څه بل حرکت مراد نهٔ دے۔ نو حرکت والا حدیث د اشارے حرکت باندې حمل دے او د حرکت نفی والا حدیث د نور حرکت په نفی باندې حمل دے۔ امام بیهقی رحمه الله هم دا توجیه کړے ده۔ (بذل المجهود ص۱۲۷ ج۲)

## په آخری قعده کښ درود شریف

د الله تعالیٰ ارشاد دے:

(۳۹۳) إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

بیشکه الله تعالیٰ او دهغهٔ فرشتے په نبی اکرم ﷺ باندې درود وائی۔ اے

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ﴿الاحزاب ۳۳ / ۵۶﴾
ايمان والو تاسو هم په هغهٔ درود وايئ او سلام وايئ۔

(۳۹۴) د حضرت کعب بن عُجره رضی الله عنه مرفوع حديث دے چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته د درود شريف د دے الفاظو تعليم ورکړو:

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ، اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ۔
(بخاری ج۱ ص۴۷۷ کتاب الانبياء، ايضاً ج۲ ص۹۴۰ باب الصلوٰة على النبی صلی الله علیه وسلم، مشکوٰة ص۸۶)

اے الله! په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې او د هغهٔ په آل باندې رحمت نازل کړه لکه چه څنګه تا په حضرت ابراهيم علیه السلام او د هغهٔ په آل باندې رحمت نازل کړې وو بيشکه ته ستائيلے شوے او بزرګ يے۔ اے الله په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې او د هغهٔ په آل باندې برکت نازل کړے لکه چه څنګه تا په حضرت ابراهيم علیه السلام او د هغهٔ په آل باندې برکت نازل کړے وو۔ بيشکه ته ستائيلے شوے او بزرګ لوئے يے۔"

د احاديث د الفاظو معمولی اختلاف سره په مسلم ج۱ ص۱۷۵، ابوداؤد، نسائی وغيره کښې هم موجود دے۔

(۳۹۵) د حضرت ابومسعود انصاری رضی الله عنه مرفوع حديث کښې دی چه يو صحابی د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوکړو۔

كَيْفَ نُصَلِّيْ عَلَيْكَ اِذَا نَحْنُ صَلَّيْنَا عَلَيْكَ فِيْ صَلٰوتِنَا.... فَقَالَ اِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَيَّ فَقُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ الخ۔

چه کله مونږ د مانځه کښې په تاسو درود شريف وايُو نو څنګه درود وايُو؟ نبی علیه السلام اُوفرمائيل چه کله تاسو په ما درود وايئ نو داسے وايئ: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ الخ

(صحیح ابن خزیمہ، صحیح ابن حبان، نصب الرایہ ص۴۲۶ ج۱)

(۳۹۶) د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ارشاد دے:

يَتَشَهَّدُ الرَّجُلُ ثُمَّ يُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَدْعُو لِنَفْسِهِ (فتح الباری ص۲۶۶ ج۲ شرح بخاری، مستدرک حاکم، ومصنف ابن ابی شیبة، اِسنادہٗ صحیح)

سړے دِ التحیات اُووائی بیا دِ په نبی کریم صلی الله علیه وسلم درود شریف اُووائی بیا دِ ځان دپاره دُعا اُوکړی۔

**فائده:-** په احادیثو کښ د درود شریف مختلف الفاظ نقل شوی دی پاسنی الفاظ د بخاری او مسلم د روایا تو نه ثابت دی ځکه غوره دی۔ (ازجاجة المصابيح ص۲۷۶ ج۱)

## په مانځه کښ درود شريف نه پس دُعا

(۳۹۷) د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه روایت دے:

قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ عَلِّمْنِي دُعَاءً أَدْعُو بِهِ فِي صَلَاتِي قَالَ قُلِ اللّٰهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا وَلَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِي إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ (بخاری ص۱۱۵ ج۱ مسلم ص۳۴۷ ج۲ مشکوٰة ص۸۷ وسنن اربعه)

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه تپوس وکړو چه یا رسول الله! ما ته داسے دُعا اُوښایئ چه څه زه ئے خپل مانځه کښ غواړم؟ نبی علیه السلام اُوفرمائیل داسے وایه اَللّٰهُمَّ اِنِّی الخ چه اے الله! ما خپل ځان باندِ ظلم کړیدے صرف هم ته بخښونکے یے۔ ته د خپل طرف نه او صرف په خپل فضل سره ما بخښنه اُوکړه او په ما رحم اُوکړے بیشکه ته بخښونکے او مهربانه یے"

**فائده:-** په احادیثو کښ ډیرے دُعاگانے داسے راغلی دی او ټولے صحیح دی۔

## دمونځ په اخرکښې ښی اوکس طرفته سلام کرځول

(۳۹۸) دحضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ كُنْتُ اَرٰی رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَعَنْ يَسَارِهٖ حَتّٰى اَرٰى بَيَاضَ خَدِّهٖ (مسلم ۱/۲۱۶، مشکوٰة ۸۷)

حضرت سعد رض فرمائیلی دی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم لید لو چه ښی اوکس طرفته ئے سلام کرځولو تردے چه ما به د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د انګی (رخسار) سپین والے لید لو۔"

(۳۹۹) دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِيْنِهٖ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ خَدِّهِ الْاَيْمَنِ وَعَنْ يَسَارِهٖ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ خَدِّهِ الْاَيْسَرِ۔ (ابوداود ۱/۱۴۳، باب فی السلام، نسائی، مشکوٰة ۸۷)

رسول الله صلی الله علیه وسلم ښی طرفته سلام اوګرځولو او فرمائیل یے : اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ تردے چه د ښی انګی سپین والے به ئے ښکاره شو اوکس طرفته به ئے سلام اوګرځولو او ویئیل به ئے اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ تردے چه کس انګے به ئے ښکاره شو۔

داحدیث دلفظ معمولی اختلاف سره ترمذی کښې هم شته دے امام ترمذی ددے حدیث باره کښې فرمائی : حَسَنٌ صَحِيْحٌ۔

داحدیث په ابن ماجه کښې دعمار بن یاسر رض نه روایت شوید ے۔

علامه عینی رحمة الله علیه په عمدة القاری ج ۱۲/۲ شرح بخاری کښې د شل ۲۰ صحابه کرام رض نومونه لیکلی دی چه دهغې نه دمانځه په اخرکښې د دوو ۲ سلامونو احادیث روایت شویدی۔ دهغې الفاظ دادی :

فَهٰؤُلَاءِ عِشْرُوْنَ صَحَابِيًّا رَوَوْا

داشل ۲۰ صحابه کرام دی چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم

عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ الْمُصَلِّيْ يُسَلِّمُ فِيْ اٰخِرِ صَلٰوتِهٖ تَسْلِيْمَتَيْنِ۔

نه روایت کوی چه مونځګذار د مانځه په آخرکښ دوه ځل سلام وائی (او دواړه طرفته د سلام اوګرځوی)۔

**فائده:**۔ په بعض مرفوع احادیثو کښ د مانځه په آخرکښ د صرف یو سلام ذکر راغلے دے۔ دے پورتنی متواتر المعنیٰ احادیثو نه د دا توجیه کړیږی چه یو سلام به لږ اوچت اواز سره وائی او دویم به لږ معمولی اواز سره۔ نو د دوه سلام والا احادیثو کښ اصل واقعے او مسئلے ذکر دے او د یو طرف سلام والا احادیثو کښ د طریقے اختلاف طرفته اشاره ده۔ (معارف السنن ص۱۱۱ جلد۳)

## د مانځه نه پس مقتد یانو ته مخ کول او کیناستل

(۴۰۰) د حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا صَلّٰى صَلٰوةً اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله مونځ اوکړو نو مونږ ته به ئے مخ مبارک را اوګرځولو۔

(بخاری ص۱۱۷ج۱، باب یستقبل الامام الناس اذا سلم، مشکوٰة ص۸۷)

دا حدیث مسلم، ترمذی، نسائی کښې هم شته۔ (مرقات شرح مشکوٰة ص۳۵۲ ج۲)

## د مانځه نه پس دُعا

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۴۰۱) قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ اَيُّ الدُّعَاءِ اَسْمَعُ قَالَ جَوْفَ اللَّيْلِ الْاٰخِرِ وَبَعْدَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوْبَاتِ۔

اُو وئیلے شو چه یا رسول الله! کومه دُعا زیاته قبلیدونکے ده۔ وے فرمائیل چه د شپے په آخری حصه کښ او د فرض [illegible] نه پس۔

(ترمذی ص۹۸ ج۲ وقال حسن، مشکوٰۃ ص۱۰۹ باب التحریض علی قیام اللیل۔)

(۴۰۲) عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰہِ عَنْ اَبِیْہِ قَالَ صَلَّیْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ الْفَجْرَ فَلَمَّا سَلَّمَ اِنْحَرَفَ وَرَفَعَ یَدَیْہِ وَدَعَا۔
(مصنف ابن ابی شیبۃ)

حضرت عبد اللہ رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی چہ ما نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم سرہ د سحر مونځ کولو کله ئے سلام اوګرځولو نو د قبلې نه ئے مخ را اوګرځولو او خپل دواړه لاسونه ئے اوچت کړل او دعا ئے اوکړه۔

اَسْوَد عامری د ابوداؤد د راویانو نه دے۔ محدث ابن حبان دے د ثقه او قابلِ اعتماد راویانو نه شمار کړیدے۔ (معارف السنن ص۱۲۳ ج۳)

د مانځه نه پس د دعا ډیر قوی احادیث روایت شویدی مثلاً د حضرت معاذ بن جبل رضی اللہ عنہ حدیث په ابوداؤد ص۲۲ ج۱، نسائی وصححه ابن حبان والحاکم۔ د ابو بکرۃ رضی اللہ عنہ حدیث نسائی ص۱۹۸ ج۱، ص۳۱۴ ج۱، ترمذی مسند امام احمد وصححه الحاکم۔ د حضرت زید بن ارقم رضی اللہ عنہ حدیث ابوداؤد ص۲۱۸ ج۱ د حضرت صهیب رضی اللہ عنہ حدیث په نسائی کبنی وصححه ابن حبان (کذا فی فتح الباری ج۱۱)

## لاس اوچتول د دعا د ادابو نه دی

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے چه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد اوفرمائیلو چه:

(۴۰۳) سَلُوا اللّٰہَ بِبُطُوْنِ اَکُفِّکُمْ وَلَا تَسْئَلُوْہُ بِظُهُوْرِهَا فَاِذَا فَرَغْتُمْ فَامْسَحُوْا بِهَا وُجُوْهَكُمْ
(ابوداؤد ص۲۱۶ ج۱، ترمذی، ابن ماجه مشکوٰۃ ص۱۹۸)

د خپل لاسونو تلی ځان ته مخامخ کړئ او دعا کوئ۔ په اولټاؤ لاسونو دعا مه کوئ او چه کله دعا اوکړئ نو خپل لاسونه په خپلو مخونو راکابدئ۔

(۴۰۴) د حضرت سلمان رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اِنَّ

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه

رَبَّكُمْ حَيِيٌّ كَرِيْمٌ يَسْتَحْيِيْ مِنْ عَبْدِهٖ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ أَنْ يَّرُدَّهُمَا صِفْرًا۔ (ابوداود ج۱ ص۲۱۶، ترمذی ج۲ ص۱۹۵، مشکوٰۃ ص۱۹۵)

ستاسو رب ډیر حیاناك دے چه بنده لاس اوچت کړی او دعا کوی نو الله پاك دخپل بنده نه حیا کوی چه دده لاسونه خالی واپس کړی۔

(۴۰۵) د حضرت عمر رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ لَمْ يَحُطَّهُمَا حَتّٰى يَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَهٗ۔ (ترمذی ج۲ ص۱۷۶، مشکوٰۃ ج۲ ص۱۹۵)

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله دعا دپاره لاس اوچتول نو په خپل مخ باندې راخکلو نه حتکښې به ئے لاندې نه ایخودل۔

(۴۰۶) د امام زهری رح مرسل روایت دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ عِنْدَ صَدْرِهٖ فِي الدُّعَاءِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهٗ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دعا کښې خپل دواړه لاسونه دسینې برابر اوچتول بیا به ئے دواړه لاسونه په خپل مخ باندې راخکل۔

(مسند عبد الرزاق ص۲۴۷ جلد دوم)

**فائده:** دمانځه نه پس دعا کول په اتفاق سره مستحب ده۔ محدث نووی شافعی رح شرح المهذب ج۳ ص۴۸۸ باندې لیکلی دی:

قَدْ ذَكَرْنَا اِسْتِحْبَابَ الذِّكْرِ وَالدُّعَاءِ لِلْإِمَامِ وَالْمَأْمُوْمِ وَالْمُنْفَرِدِ وَهُوَ مُسْتَحَبٌّ عَقْبَ كُلِّ الصَّلَوَاتِ بِلَا خِلَافٍ۔

مونږه د امام، مقتدی او منفرد دپاره دعا او ذکر استحباب بیان کړے دے او هغه په اتفاق سره د ټولو مونځونو نه پس مستحب دے۔

امام بخاری رحمة الله علیه دمانځه نه پس ددعا د ثبوت دپاره په صحیح بخاری ج۲ ص۹۳۷ کښې مستقل باب قائم کړے دے "بَابُ الدُّعَاءِ بَعْدَ الصَّلٰوةِ

(دمانځه نه پس دُعا باب.) ددے په شرح کښې حافظ ابن حجرؒ شافعي فرمائيلي دي چه ددے عنوان نه د امام بخاريؒ مقصد په هغه خلقو رَد کوُل دي چه دمانځه نه پس دُعا جائز کيدلو قائل نهٔ دي:

"وَفِيْ هٰذِهِ التَّرْجَمَةِ رَدٌّ عَلٰى مَنْ زَعَمَ اَنَّ الدُّعَاءَ بَعْدَ الصَّلٰوةِ لَا يَشْرَعُ اهـ۔ (فتح الباري شرح بخاري ص۱۱۳ ج۱۱)

دغو بابونو نه روستو امام بُخاري دوئيم عنوان قائم کړيدے: "بَابُ رَفْعِ الْاَيْدِيْ فِي الدُّعَاءِ" (په دُعا کښې لاس اُوچتول.) او په دې کښې لاس اُوچتول او دُعا کولو په ثبوت کښې ئې احاديث ذکر کړيدي۔

حافظ ابن حجرؒ د پاسني دواړو بابونو د لاندې ئې دمونځ نه پس د دُعا مسئله کښې د احاديثو په رڼا کښې په تفصيل سره بيان کړيدے او د جمهورو دَ مسلک ئې مکمل تائيد کړيدے۔

دمانځه نه پس د دُعا په ثبوت کښې ډير احاديث نقل شويدي۔

حافظ ابنِ قيّم حنبليؒ په "زَادُ الْمَعَادْ" کښې د جمهورو نه اختلاف کړيدے او دمانځه نه پس د دُعا کوُلو نه ئې انکار کړيدے - د دهٔ په نزد دَسلام نه پس ذکر، اَذکارِ مسنونه ادا کولے شي او هغې نه پس دُعا کوُل صحيح دي۔

حافظ ابن حجرؒ شارح د بخاري د احاديثو په رڼا کښې د حافظ ابن قيّم د موقف ترديد کړيدے۔ (فتح الباري ص۱۱۳ ج۱۱ و ص۱۱۹، ۱۲۱ ج۱۱)

دغيرمُقلد ينو رهنما علامه عبد الرحمٰن مبارکپوري هم د دے مسئله کښې د جمهورو ملګرے دے او دمانځه نه پس د دُعا قائل دے

(تحفة الاحوذي شرح ترمذي ص ۲۴۵ و ۲۴۶ جلد ۱)

بعضِ محققينو فرمائيلي دي چه دمانځه نه پس د دُعا په ثبوت

کښې قولي احاديث ډيردي ليکن په دے باندې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د عمل هميشوالے ثابت نۀ دے۔ (معارف السنن ۱۲۳ شرح ترمذي)

## دَ دُعا طريقه

اول د الله تعالىٰ حمد او ثنا وئيل بيا درود شريف وئيل، دد ے نه پس دُعا کول۔

(۴۰۷) حضرت فضاله بن عبيد رضي الله عنه ته نبي کريم صلى الله عليه وسلم دُعا طريقه اُوفرمايله
فَاحْمَدِ اللّٰهَ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ وَصَلِّ عَلَيَّ ثُمَّ ادْعُهٗ۔ (ترمذي ۱۸۶/۲، مشکوٰة ص۸۶)
د الله تعالىٰ د شان مناسب حمد اُووايه او په ما باندې درود اُووايه او بيا د الله تعالىٰ نه دُعا اُوغواړه۔

امام ترمذيؒ د دے حديث ته حسن وئيلي دي۔ (ترمذي ۱۸۶/۲)

د دے مضمون حديث په ابو داوٴد، نسائيؒ وغيره کښې هم شته دے۔ (مرقات شرح مشکوٰة ۳۴۵/۲)

## دَ دُعا په آخر کښې آمين وئيل

(۴۰۸) په يو مرفوع حديث کښې راغلي دي چه يو صحابي په زاري او عاجزئ سره دُعا کوله نو په دے ورته نبي کريم صلى الله عليه وسلم اُوفرمائيل، کۀ چرے دۀ دُعا په آمين سره ختمه کړے وي نو دُعا به ئے خامخا قبليږي۔ (ابوداوٴد ص۱۳۳/۱)

(۴۰۹) حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه فرمائيلي دي:
اِنَّ الدُّعَاءَ مَوْقُوْفٌ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ لَا يَصْعَدُ مِنْهَا شَيْءٌ حَتّٰى تُصَلِّيَ عَلٰى نَبِيِّكَ۔ (ترمذي ۱۴۲/۱، مشکوٰة ص۸۷)
بيشکه دُعا د آسمان او زمکے ترمينځه ودرولے وي۔ دد ے څۀ حصه هم پورته نۀ ځي (د الله په دربار کښې نۀ قبليږي) ترڅو چه تۀ نبي عليه السلام باندې درود اُووائے۔

مُحققين محدثين فرمائي چه دا حديث مرفوع حکمي دے (مرقات ۳۳۸/۲)

بعض علمائے کرام فرمائی چه د دُعا په اول او اٰخرکښ درود شریف اُووئیلے شی نو دَ دُعا د قبلید و ډیر امکان وی۔

## په جمات کښ د جمع د مونځ اهتمام

د الله تبارك وتعالیٰ ارشاد دے:

(۴۱۰) وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ۝ (البقره ۴۳) او د رکوع کوونکو سره رکوع کوئ۔

د رکوع نه مراد مونځ دے یعنی بجمع سره مونځ کوئ (تفسیر روح المعانی ص ۲۴۷ ج ۱)

(۴۱۱) د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ الْمُؤَذِّنَ فَيُقِيْمَ ثُمَّ آمُرَ رَجُلًا يَؤُمُّ النَّاسَ ثُمَّ آخُذَ شُعَلًا مِّنْ نَّارٍ فَأُحَرِّقَ عَلٰى مَنْ لَّا يَخْرُجُ إِلَى الصَّلٰوةِ بَعْدُ۔ (بخاری ص ۸۹ ج ۱، مسلم ص ۲۳۲ ج ۱)

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه ما اراده اُوکړه چه څه مؤذن ته حکم اُوکړم چه هغه اِقامت اُووائی بیا څه څوک ته حکم اُوکړم چه خلقو ته مونځ ورکړی او څه هغه خلق په اُور سره اُوسوزوم (چه د آذان نه پس هم) مانځه طرف ته نه راځی۔

دنبی کریم صلی الله علیه وسلم دومره ډیره زور نه د جمع د واجب کیدو دیاره دلیل دے۔ باقی نبی علیه الصلوٰة والسلام جمع پریخودونکو ته سزا ولے ورنکړه او اِراده ئے عملی نه کړه۔ د دے جواب د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په دویم حدیث کښ دے۔ هغه دا دے:

(۴۱۲) د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے،

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْلَا مَا فِي الْبُيُوْتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالذُّرِّيَّةِ أَقَمْتُ صَلٰوةَ الْعِشَآءِ

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے که چرے په کورونو کښ ښځے او ماشومان نه وے نو ما به د ماسخوتن مونځ اُودرولو او

وَ اٰمُرَتُ فِتْیَانِیْ یُحَرِّقُوْنَ مَافِی الْبُیُوْتِ بِالنَّارِ۔
(مسند امام احمد ج۲ ص۳۶۷، مشکوٰۃ ص۹۷)

خپلو ځوانانو ته به م حکم ورکولو چه د دوی په کورونو اور اولګوی (څوک چه د جمع مونځ ته نهٔ راځي.)

(۲۱۳) د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوۃُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلٰوۃَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِیْنَ دَرَجَةً۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د جمع مونځ د ځانله مونځ نه اووویشت درجے غوره دے.

(بخاری ج۱ ص۸۹، مسلم ج۱ ص۲۳۱، مشکوٰۃ ص۹۵)

## دَ اِمامت معیار

د جمع د مونځ امامتی یو ډیر اهم دینی منصب دے. نبی کریم صلی الله علیه وسلم او د هغوی د وفات نه روستو خُلفائے راشدینو رضی الله عنهم همیشه د پاره د اِمامت د مونځ اهتمام کړیں دے. دالوړے منصب په اصل کښ د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم او خلفائے راشدینو پیروی او نیابت دے.

(۲۱۴) د حضرت ابُو مسعود انصاری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یَؤُمُّ الْقَوْمَ اَقْرَءُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ فَاِنْ كَانُوْا فِی الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَاَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ فَاِنْ كَانُوْا فِی السُّنَّةِ سَوَاءً فَاَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً فَاِنْ كَانُوْا فِی الْهِجْرَةِ سَوَاءً فَاَقْدَمُهُمْ سِنًّا (الحدیث)
(مسلم ج۱ ص۲۳۶، مشکوٰۃ ص۱۰۰ باب الامامة)

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے هغه سړے دِ امام جوړیږی چه د ټولو نه زیات او ښهٔ قاری وی او کهٔ په قرأت کښں ټول برابر وی نو بیا چه کوم ډیر عالم وی په سنتو باندِ او کهٔ په عِلم کښں ټول برابر وی نو بیا چه اول هجرت ئے کړے وی او کهٔ هجرت کښں ټول برابر وی نو بیا دِ ډیر عُمر والا امام جوړشی.

وَفِي مسلمٍ : فَاَقْدَمُهُمْ اِسْلَامًا۔

صحیح مُسلم کښې روایت دے چه که چرے په هجرت کښې ټول برابر وی نو بیا چه چا مخکښې اسلام راوړے وی اِمامت دِ اُوکړی۔

حاصل دا دے چه دکتاب او سُنت علم، عمل، تقوی او ښهٔ اخلاق او دینی خدماتو کښې د ټولو نه اُوچت او غوره وی هغه د دے منصب دپاره لائق او غوره دے۔

## دصفونو برابر وَلو اَهمیت

دحضرت انس رضی الله عنهٗ مرفوع حدیث دے:

(۲۱۵) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ فَاِنَّ تَسْوِيَةَ الصُّفُوْفِ مِنْ اِقَامَةِ الصَّلٰوةِ. (بخاری ج۱ ص۱۰۰ مسلم ج۱ ص۱۸۲ مشکوٰة ص۹۸)

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی خپل صفونه برابر وی ځکه چه صفونو نه برابرول د دمونځ قائمولو یوه حصه ده۔

په صحیح مسلم کښې "مِنْ تَمَامِ الصَّلٰوةِ" لفظ دے چه صفونه برابرول دمونځ کمال او مکمل والے دے۔

## د اَول صَف فضیلت

دحضرت اَبُو اُمامه رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۲۱۶) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْاَوَّلِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ وَعَلَى الثَّانِيْ قَالَ اِنَّ اللهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْاَوَّلِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه بیشکه الله تعالیٰ رحمت نازلوی او د هغه فرښتے د رحمت دُعا کوی اول صف دپاره۔ نو صحابو عرض اوکړو چه دوئم صف دپاره هم؟ نبی علیه السلام اُوفرمائیل چه بیشکه الله تعالیٰ رحمت نازلوی

وَعَلَى الثَّانِي قَالَ إِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ عَلَى الثَّانِي قَالَ وَعَلَى الثَّانِي۔ (مسند امام احمد ج۵ ص۲۶۲، مشکوٰۃ ص۹۸)

او فرشتے درحمت دُعاکوی اول صف والو دپاره. صحابو عرض اوکړو او دویم صف دپاره هم؟ نبی علیه السلام اُوفرمائیل چه یقیناً الله تعالیٰ رحمت نازلوی او دهغه فرشتے درحمت دعاکوی اول صف والو دپاره. صحابه عرض اوکړو او دویم صف دپاره؟ نبی علیه السلام اُوفرمائیل او دویم صف دپاره هم۔"

نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم درے ځله د اول صف فضیلت اُوفرمائیلو او په څلورم ځل ئے د دویم صف درجه ارشاد اُوفرمائیله۔

(۲۱۷) د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم لَوْ أَنَّ النَّاسَ يَعْلَمُوْنَ مَا فِي النِّدَاءِ وَالصَّفِّ الْأَوَّلِ ثُمَّ لَمْ يَجِدُوْا إِلَّا أَنْ يَّسْتَهِمُوْا عَلَيْهِ لَاسْتَهَمُوْا (الترمذی ج۱ ص۳۱ ما جاء فی فضل الصف الاول)

رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمائیلو که چرے خلقوته د دے ثواب معلوم شو چه اذان کولو او په اول صف کښ مونځ کولو کښ دے، بیا به ئے بغیر د قرعه اندازئ (حسنړی) نه حاصل نکړی نو خامخا به قرعه اندازی کوی۔

## د تکبیر اُولیٰ مونځ لو فضیلت

د حضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث دے۔

(۲۱۸) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم مَنْ صَلّٰى لِلّٰهِ أَرْبَعِيْنَ يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيْرَةَ الْأُوْلٰى كُتِبَ لَهٗ بَرَاءَتَانِ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه څوک څلویښت ورځے جمع سره داسے مونځ اُوکړی چه تکبیر اُولیٰ تربنه فوت نشی نو د ده دپاره دوه خلاصیدل

بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ وَبَرَاءَةٌ مِّنَ النِّفَاقِ۔

لیکلے کیږی۔ یو د دوزخ نه د بچ کیدو او دویم د منافقت نه د بچ کیدو۔

(ترمذی ج۱ ص۳۳ باب فی فضل التکبیرة الاولیٰ)

**فائده:-** د دے حدیث نه دا هم معلوم شوه چه د یو نیک کار دپاره د څلویښتو ورځو پابندی کول خاص اثر لری۔

## د ښځے مونځ په کور کښ غوره دے

د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۴۱۹) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةُ الْمَرْأَةِ فِيْ بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلٰوتِهَا فِيْ حُجْرَتِهَا وَصَلٰوتُهَا فِيْ مُخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلٰوتِهَا فِيْ بَيْتِهَا۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د ښځے په برانډه کښ مونځ کول غوره دی د کور د صحن (غولی) والا مونځ نه او د کور د برانډے (دالان) د مونځ نه د کوټے مونځ غوره دے۔

(ابوداود ج۱ ص۹۱ باب ماجاء فی خروج النساء الی المسجد، مشکوٰة ص۹۶)

**فائده:-** مقصد دا دے چه د ښځے مونځ بند په پرده او په کور کښ دننه غوره دے۔

## د وتر مونځ واجب دے

حضرت بُرَیده رضی الله عنه فرمائیلی دی: (۴۲۰)

سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَلْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَّمْ يُوْتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا اَلْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَّمْ يُوْتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا اَلْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَّمْ يُوْتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا۔

چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه آوریدلی دی چه د وتر مونځ حق دے چا چه وتر اونکړل هغه زمونږ نه نۀ دے۔ (دا خبره ئے درے ځله اُوفرمائیله)

(ابوداود ج۱ ص۲۰۸، مشکوٰة ص۱۱۳)

امام حاکمؒ دے حدیث ته صحیح وئیلی دی (فتح القدیر صـ۳۷۱/۱ج، نصب الرایه صـ۱۱۲/۲ج)

د سخت وعید عنوان د وترو په واجب کیدو باندې دلیل دے :

(۴۲۱) د حضرت ابو ایوب رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوِتْرُ حَقٌّ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ۔

د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه د وترو مونځ په هر مسلمان حق دے۔

(ابوداؤد صـ۲۰۸/۱ج، نسائی، ابن ماجه، مشکوٰة صـ۱۱۲)

(۴۲۲) د حضرت ابوسعید خدری رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے :

اَوْتِرُوْا قَبْلَ اَنْ تُصْبِحُوْا۔

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه د سحر مانځه نه مخکښ وتر اداکوئ۔

(مسلم صـ۲۵۸/۱ج، سنن اربعه، مشکوٰة صـ۱۱۱)

(۴۲۳) د حضرت علی رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْتِرُوْا يَا اَهْلَ الْقُرْاٰنِ ۔

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی، اے قرآن منونکو! وتر اداکوئ۔

(ترمذی صـ۶۱، مشکوٰة صـ۱۱۱، ابوداؤد صـ۲۰۷/۱ج، نسائی صـ۲۴۹)

په دے حدیثونوکښ د امر صیغه ده او مطلق امر وجوب دپاره راځی۔

## د وترو قضا لازمه ده

د حضرت ابوسعید خدری رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے :

(۴۲۴) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهٖ اَوْ نَسِيَهٗ فَلْيُصَلِّ اِذَا ذَكَرَ وَاِذَا اسْتَيْقَظَ۔

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی چه څوک د وترو مانځه نه اوده شو او یا ترے هیر شی او بیا د خوب نه بیدار شی نو ځامخا دے اوکړی۔

(ترمذی صـ۶۳/۱ج، ابوداؤد صـ۲۰۳/۱ج، ابن ماجه)

**فائده :-** د دے حدیث نه دا واضحه شوه چه د وترو مونځ

قضا واجب او ضروری دہ او د قضا وجوب فرع دہ د وجوبِ ادا۔
(اوجز المسالک شرح موطا امام مالک ص۳۲ ج۲)

## وِتر درے رکعتہ پہ یو سلام سرہ

د حضرت اُبَیّ بن کعب رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

(۴۲۵) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ يَقْرَأُ فِي الْأُوْلٰى بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى وَفِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ بِقُلْ يَا أَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ وَفِي الثَّالِثَةِ بِقُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ وَلَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِيْ اٰخِرِهِنَّ۔ (نسائی ص۲۴۸ ج۱ سند حسن)

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم بہ درے رکعتہ وتر کول۔ پہ اول رکعت کښ بہ ئے سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى او دویم رکعت کښ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ او دریم رکعت کښ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ وئیلو او صرف پہ آخری رکعت بہ ئے سلام گرځولو۔

(۴۲۶) د حضرت عائشہ صدیقہ رضی اللہ عنہا مرفوع حدیث دے:

يُصَلِّيْ أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُوْلِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّيْ أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُوْلِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّيْ ثَلَاثًا۔
(بخاری ص۱۵۴ ج۱ باب قیام النبی صلی اللہ علیہ وسلم باللیل فی رمضان، مسلم ص۲۵۴ ج۱ باب صلوٰۃ اللیل)

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم بہ د تهجد مونځ څلور رکعتہ کولو، د هغے د ښائست او اوږدوالی بہ څہ وائے۔ بیا بہ ئے څلور رکعتہ مونځ کولو، د هغے د ښائست او اوږدوالی تپوس مکوہ۔ بیا بہ ئے درے رکعتہ کول۔

**فائدہ:** د دے حدیث ښکارہ مفهوم دا دے چہ دا درے رکعتہ د وتر وُو او یو سلام سرہ وُو۔ لکہ چہ امام نسائی پہ دے حدیث باندِ دا عنوان قائم کړیدے "باب کیف الوتر بثلاث" (نسائی ص۲۴۸ ج۱)

(۴۲۷) د دینہ پس ئے د حضرت عائشہ رضی اللہ عنہا دا مرفوع حدیث راوړے دے:

إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُسَلِّمُ فِيْ رَكْعَتَيِ الْوِتْرِ۔ — نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم به د وترو په دواو رکعتو سلام نه کرځولو.

د دینه واضحه شوه چه د محدث نسائی په نزد د حضرت عائشه رضی اللہ عنها دغه ذکر شوے د بخاری او مسلم والا حدیث کښ د وترو درے رکعته په یو سلام سره مراد دے.

(۴۲۸) د حضرت عائشه رضی اللہ عنها دریم مرفوع حدیث دے:

ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ۔ (مسند امام احمد ج ۶ ص ۱۵۶) — بیا نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم درے رکعته وتر اوکړه۔ په دیکښ ئے په سلام سره جدا ئی او نکړه (یعنی په دویم رکعت ئے سلام اونه کرځولو۔)"

(۴۲۹) د حضرت عائشے رضی اللہ عنها څلورم مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِيْ آخِرِهِنَّ (مستدرک حاکم وقال صحیح علی شرط الشیخین) — رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم درے رکعته وتر اوکړه۔ صرف د هغے په آخر کښ ئے سلام اوکرځولو۔

(۴۳۰) د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنه مرفوع حدیث دے،

ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ۔ (مسلم ج ۱ ص ۲۶۱) — بیا نبی صلی اللہ علیہ وسلم درے رکعته وتر اوکړه۔

(۴۳۱) د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنه دویم مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ يَقْرَأُ فِي الْأُوْلٰى بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى وَ فِي الثَّانِيَةِ بِقُلْ يَا أَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ وَفِي الثَّالِثَةِ بِقُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ ۝ (نسائی ج ۱ ص ۲۴۹) — رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم درے رکعته وتر وکړه په اول رکعت کښ ئے سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى او دویم کښ ئے قُلْ يَا أَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ۝ او دریم رکعت کښ ئے قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ ۝ اوویلو.

(۴۳۲) د حضرت عبد الرحمٰن بن اَبزیٰ رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

إِنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوِتْرَ فَقَرَءَ فِي الْأُوْلَى بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَ فِي الثَّانِيَةِ قُلْ يَآ أَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ٥ وَ فِي الثَّالِثَةِ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ٥

(نسائی ج۱ ص۲۵۱، مسند امام احمدؒ، طحاوی ص۱۷۲ جلد اول سند صحیح)

حضرت عبد الرحمٰن رضی اللہ عنہ د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم سره د وترو مونځ اُوکړو. نو نبی علیہ السلام د وترو په اول رکعت کښې سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى او دویم رکعت کښې قُلْ يَآ أَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ٥ او دریم رکعت کښې قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ٥ اُولوستلو.

(۴۳۳) د حضرت علی رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے:

كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم به درے رکعته وتر کول

(ترمذی ج۱ ص۶۱ باب ماجاء فی الوتر بثلاث، مسند احمد ج۱ ص۸۹)

(۴۳۴) د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ نوسے قاسم بن محمد بن ابوبکرؒ فرمائیلی دی:

رَأَيْنَا أُنَاسًا مُنْذُ أَدْرَكْنَا يُوْتِرُوْنَ بِثَلَاثٍ.

(بخاری ج۱ ص۱۳۵)

چه کله مونږه بالغ شو او په هوش کښې راغلو نو مونږ خلق لیدل چه وتر به ئے درے رکعته کول.

ددے صحیح حدیث نه واضحه شوه چه قاسم بن محمد تابعیؒ په وړاندے صحابوؓ او تابعینوؒ ټول اهلِ اسلام وترمونځ درے رکعته کولو.

(۴۳۵) د حضرت علی رضی اللہ عنہ شاګرد حسن بصری رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

أَجْمَعَ الْمُسْلِمُوْنَ عَلٰى أَنَّ الْوِتْرَ ثَلٰثٌ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي

د اهلِ اسلام په دے اجماع ده چه وترمونځ درے رکعته دے او صرف د دے

آخِرِهِنَّ۔ پہ آخری رکعت کښې سلام دے۔

(مصنف ابن ابی شیبہ ج۲ ص۲۹۴، نصب الرایہ ج۱ ص۱۲۲)

**فائدہ:۔** د وتر لغوی معنیٰ دہ "طاق" د تهجد مونځ۔ د اصطلاحی وتر شامل کولو سره طاق جوړیږی۔ د دے وجے نه بعضِ احادیثو کښې په صَلٰوةُ اللَّيْل او تهجد مونځ دپاره د وتر لفظ اُووئیلے شو۔

(۲۳۶) حضرت عبد الله بن ابی قیس رحمۃ الله علیہ فرمائیلی دی:

سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بِكَمْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْتِرُ قَالَتْ بِأَرْبَعٍ وَّثَلَاثٍ وَّسِتٍّ وَثَلَاثٍ وَثَمَانٍ وَّثَلَاثٍ وَ عَشْرَةٍ وَّثَلَاثٍ۔

ما د حضرت عائشے رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه رسول الله صلی الله علیہ وسلم څو رکعته وتر کول؟ وے فرمائیل: څلور او درے رکعته، شپږ او درے رکعته، اته او درے رکعته لس او درے رکعته۔

(مسند امام احمد، سنده حسن۔ ابو داود ج۱ ص۲۰۱، مشکوٰة ص۱۱۲)

**فائدہ:۔** د دے نه واضحه شوه چه اصطلاحی وتر خو همیشه دپاره درے رکعته وو۔ د دے سره د تهجد مونځ کم او زیات کولے شو۔ څلور، شپږ، اته، لس۔ او دا هم واضحه شوه چه د وتر اطلاق مطلق د تهجد مونځ باندِ هم کولے شو۔

**فائدہ:۔** یو رکعت یوځائے کولو سره دوه رکعته مونځ وتر جوړیږی د دے وجے نه په بعضِ روایاتو کښې په یو رکعت باندِ هم د وتر اطلاق شوے دے۔ د دے مطلب دا دے چه یو رکعت د کومو دوؤ رکعتو سره یوځائے شی هغه به ورسره وتر جوړ شی۔ (طاق به جوړ شی)

لکه چه په بخاری ج۱ ص۱۳۵، ابواب الوتر او مسلم ج۱ ص۲۵۷ کښې د حضرت عبد الله بن عُمر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

(۴۳۷) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةُ اللَّيْلِ مَثْنٰى مَثْنٰى فَاِذَا خَشِیَ اَحَدُكُمُ الصُّبْحَ صَلّٰى رَكْعَةً وَّاحِدَةً تُوْتِرُ لَهٗ مَا قَدْ صَلّٰى.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی د شپې مونځ دوه دوه دی. پس د تاسو نه چه څوک د صبا ختو په ویره وی نو یو رکعت دِ اُوکړی. دغه یو رکعت به هغه شوی مونځ وتر جوړ کړی.

حاصل دا شو چه صَلٰوةُ اللَّيْلِ د شپې مونځ یا به یو رکعت بانڼِ د وترو اطلاق د لغوی معنیٰ په اعتبار سره دے یا مجازًا دے. اصطلاحی وتر مونځ درے رکعته په یو سلام سره دی، څنګه چه د ډیرو صحیح احادیثِ مرفوعه نه ثابت شوی دی.

خاصکر حضرت حسن بصری تابعی خو په درے بانڼِ د خپلے زمانے د اهلِ اسلام اجماع نقل کړیدے.

**فائده**:- په درے رکعته وترو بانڼِ دلالت کوُنکی احادیث د شلو نه زیات دی چه د هغے تفصیل په اَوجز المسالک شرحه د مؤطا امام مالک طبع ملتان ص ۲۳۵/۱۷ کښ لیکلے شوی دے.

## د وتر مونځ کښ دُعائے قنوت همیشه دا او د رکوع نه مخکښ دے

(۴۳۸) د حضرت اُبَیِّ بنِ کعب رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوْتِرُ..... وَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوْعِ. (نسائی ص ۲۴۸/۱۷، ابن ماجه، سند صحیح)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به وتر کوُل ..... او د رکوع نه مخکښ به ئے دعائے قنوت وئیلو.

(۴۳۹) حضرت علقمه رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

اِنَّ ابْنَ مَسْعُوْدٍ رضی الله عنه وَ

ابن مسعود رضی الله عنه او نورو صحابه کرامو رض

| | |
|---|---|
| اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوْا يَقْنُتُوْنَ فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوْعِ۔ | به په وترو کښې د رکوع نه مخکښې دُعائے قُنوت وئیلو۔ |

(۴۴۰) حضرت اَسود تابعی رحمة الله علیه د حضرت عبد الله بن مسعودؓ عمل په دے الفاظو سره بیانوی:

| | |
|---|---|
| اِنَّهٗ كَانَ يَقْرَأُ فِيْ اٰخِرِ رَكْعَةٍ مِّنَ الْوِتْرِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرَّكْعَةِ۔ (رواه الامام بخاری فی جزء رفع الیدین بسند صحیح) | حضرت عبد الله بن مسعودؓ د وتر په آخری رکعت کښې قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ اُووئیلو او بیا به ئے خپل دواړه لاسونه اُوچت کړل او د رکوع نه مخکښې به ئے دعائے قنوت وئیلو۔ |

(۴۴۱) هم دارنګ په وترو کښې د رکوع نه مخکښې دعائے قنوت وئیلو مرفوع حدیث د حضرت عبد الله بن عباسؓ نه په حلیه اَبُونُعَیم کښې

(۴۴۲) او د حضرت ابن عُمرؓ نه په طبرانی کښې هم روایت شوے دے چه د هغے تفصیل په نصب الرایه ص۱۲۳/۲، الدرایه ص۱۹۲/۱ کښې دے۔

**فائده**:- په بعض احادیثو کښې د رکوع نه پس د دعائے قنوت ذکر راغلے دے۔ نو د هغے نه مراد قُنوتِ نازله دے چه څه ضروری حادثه یا مصیبت په وخت د رکوع نه پس وئیلے شی۔ لکه چه د حضرت انس رضی الله عنه د دے لاندینی حدیث نه ثابت دے۔

(۴۴۳) حضرت عاصم رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

| | |
|---|---|
| سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ فِي الصَّلٰوةِ كَانَ قَبْلَ الرُّكُوْعِ اَوْ بَعْدَهٗ قَالَ قَبْلَهٗ اِنَّمَا قَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | ما د حضرت انس رضی الله عنه نه په مانځه کښې د دعائے قنوت باره کښې تپوس اُوکړو چه د رکوع نه مخکښې دے یا روستو۔ حضرت انسؓ اُوفرمائیل چه د رکوع نه مخکښے۔ |

بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا إِنَّهُ كَانَ بَعَثَ أُنَاسًا يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّاءُ سَبْعُونَ رَجُلًا فَأُصِيبُوا فَقَنَتَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا يَدْعُو عَلَيْهِمْ۔ (صحیح بخاری ج۱ ص۱۳۶ باب القنوت قبل الرکوع وبعده، ومسلم ج۱ ص۲۳۷، مشکوٰۃ ص۱۱۳)

نبی علیہ السلام د رکوع نه پس صرف یو میاشت دعائے قنوت وئیلو۔ هغوی اویا قاریان او عالمان تبلیغ د پاره لیږلی وو چه شهیدان کړے شول. نو نبی علیہ السلام کفارو ته د بد دعا او خیر کولو د پاره د رکوع نه پس یوه میاشت قنوت (نازله) وئیلے وو۔

## د دعائے قنوت الفاظ

(۳۳۴) اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ وَنُؤْمِنُ بِكَ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ وَنُثْنِيْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ، وَنَشْكُرُكَ وَلَا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ ط اَللّٰهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَلَكَ نُصَلِّيْ وَنَسْجُدُ وَإِلَيْكَ نَسْعٰى وَنَحْفِدُ وَنَرْجُوْا رَحْمَتَكَ وَنَخْشٰى عَذَابَكَ إِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ ط

اے الله! مونږ ستا نه مدد غواړو او په تا باندې ایمان راوړو او په تا توکل کوو او ستا تعریفونه کوو او ستا شکر ادا کوو او ستا ناشکری نه کوو او جدا کیږو مونږ که او پریږدو مونږ که هغه خلق چه ستا نافرمانی کوی. اے الله! مونږ صرف ستا عبادت کوو او تا لره مونځ کوو او سجده کوو او تا طرف ته منډے وهو او خدمت کوو او ستا د رحمت امید لرو او ستا د عذاب نه ویریږو په تحقیق ستا عذاب کافرانو پورے پیوست دے."

دا دعائے قنوت معمولی لفظی اختلاف سره د حضرت عمر رضی، حضرت عثمان رضی، حضرت علی رضی، حضرت عبد الله بن مسعود رضی، حضرت اُبَی بن کعب رضی

ډیر اٰثار وسره په تفصیل سره روایت شوي دي چه د هغې نه لوړ مجموعې نه دا دُعا ثابته ده۔

دغه ' اٰثار ' تفصیل په مصنّف اِبنِ اَبي شَیبَة ص۳۰۱، ۳۱۴، ۳۱۵ ج۲ کښې او په مُسند عبد الرزاق ص۱۱۰ نه ص۱۱۴ ج۳ کښې اُوګورئ۔

دا خبره دِ واضحه وي چه محدث اِبنِ ابي شیبه المتوفی ۲۳۵ھ د امام بخاري او امام مسلم اُستاذ او شیخ دے او محدث عبد الرزاق المتوفی ۲۱۱ھ د حضرت امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه شیخ او استاذ دے۔

مُفسّر او محدث علامه سُیوطی رح شافعي لیکلي دي چه دا دُعا په اصل کښې د قرآن مجید دوه سُورتونه وُو۔ یو سورة الخلع دویم سورة الحفد چه د هغې قرآني حیثیت منسوخ شوے۔ (الاتقان ص۲۶ ج۱)

اُوس د دُعا په حیثیت سره وئیلے شي۔ د حضرت عمر بن الخطاب رض حضرت علي رض، حضرت عبد الله بن مسعود رض نه دا دُعا ثابته ده۔ حضرت انس بن مالک رض په وترو کښې د دے وئیلو حکم کړے وُو۔ د حضرت اُبَي بن کعب رض، حضرت ابن عباس رض، حضرت ابو موسیٰ رض په مصحفونو کښې هم دا دُعا لیکلے ده۔ (تفسیر در منثور للسیوطی رح ج۶ ص۴۲۰)

مُفسر سُیوطی رح په خپل تفسیر ' دُرِّ مَنثُور ' په آخر کښې د سُورة النّاس تفسیر اُولیکلو او دا عنوان ئے قائم کړے دے۔ " ذِکرُ مَا وَرَدَ فِي سُورَةِ الْخَلْعِ وَسُوْرَةِ الْحَفْد۔ " یعنې د دغې ' اٰثار ' ذکر سورة الخلع اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَستَعِینُکَ الخ او سورة الحفد اَللّٰهُمَّ اِیَّاکَ نَعبُدُ الخ په باره کښې راغلي دي۔ د دے نه لوند دے تقریبًا یوه نیمه صفحه کښې ئے دا پاسني د قنوت الفاظ په مجمله طریقه بانډې د اٰثارِ صحابهؓ نه ثابت کړیدي او دلائلو سره ئے وئیلي دي چه دا دُعا د ډیرو صحابه کرامو په صحیفو کښې

سلسله دوه - د علامه سیوطی د بحث بعض الفاظ دا دی:

① حضرت حماد رحمة الله علیه وائی:

قَرَءْنَا فِیْ مُصْحَفِ اُبَیِّ بْنِ کَعْبٍ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ وَ نَسْتَغْفِرُكَ اهـ۔

مونږ د حضرت ابی بن کعب په مصحف کښ دا دعا لوستلے وه۔ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ وَ نَسْتَغْفِرُكَ اهـ۔

② حضرت عبد الرحمٰن رحمة الله علیه فرمائی:

صَلَّیْتُ خَلْفَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ السُّوْرَةِ الثَّانِیَةِ قَالَ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ وَ نَسْتَغْفِرُكَ اهـ۔

چه ما حضرت عمر پسے مونځ کولو چه کله هغه د دویم سورة و ئیلو نه فارغ شو نو دا دعائے اُولوستله: اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ الخ۔

③ وَفِیْ مُصْحَفِ ابْنِ عَبَّاسٍ قِرَاءَةُ اُبَیٍّ وَ اَبِیْ مُوْسیٰ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ اهـ۔

د حضرت عبد الله بن عباس په مصحف کښ د حضرت ابی بن کعب او حضرت ابو موسیٰ قرأت وو په هغے کښ وو: بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ اهـ۔

④ حضرت ابان رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

سَاَلْتُ اَنَسَ ابْنَ مَالِكٍ عَنِ الْکَلَامِ فِی الْقُنُوْتِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ اهـ

ما د حضرت انس نه د قنوت په باره کښ تپوس اُوکړو نو وے فرمائیل اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ اهـ۔

⑤ حضرت عبد الرحمٰن بن ابی لیلیٰ رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

اِنَّ عُمَرَ رضی الله عنه قَنَتَ بِهَاتَیْنِ السُّوْرَتَیْنِ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ

حضرت عمر بن خطاب دا دوه سورتونه د قنوت په طور سره وئیل: اَللّٰهُمَّ اِنَّا

وَاللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ اھ۔ نَسْتَعِيْنُكَ الخ او اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ اھ۔
(اخرجه محمد بن نصر رح)

(۶) د حضرت خالد بن عمران رحمة الله عليه نه روايت دے چه حضرت جبرائيل عليه السلام نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته د دے الفاظو په قنوتِ نازله كښې تعليم وركړے وو:

ثُمَّ عَلَّمَهُ هٰذَا الْقُنُوْتَ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ الخ

(اخرجه البيهقي ص۲۱۰ ج۲ مرسلاً، مراسيل ابوداؤد، نصب الرايه ص۱۳۶ ج۲، التلخيص الحبير مع شرح المهذب ص۲۵۱ جلد۳)

(۷) وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ صَحِيْحًا مَوْصُوْلًا۔ قنوت اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ اھ د حضرت عمر بن خطاب رض نه په صحيح متصل سند سره مروى او نقل دى. (بيهقي ص۲۱۱ ج۲، التلخيص الحبير مع شرح المهذب ج۳ ص۲۵۰)

(۸) حضرت عُبيد بن عُمير رحمة الله عليه فرمائيلى دى چه حضرت عمر بن خَطّاب رضى الله عنه د سحر په مانځه كښې دا قنوت اُووئيل:

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ اھ

(مصنف ابن ابى شيبة ص۳۱۴ ج۲، محمد بن نصر، سنن بيهقى.)

(۹) حضرت عبد المالك بن سُوَيد رحمة الله عليه فرمائيلى دى:

اَنَّ عَلِيًّا قَنَتَ فِى الْفَجْرِ بِهَاتَيْنِ السُّوْرَتَيْنِ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ الخ۔ (مصنف ابن ابى شيبة ص۳۱۴ ج۲) حضرت على كرم الله وجهه په مانځه كښې د دے دوو سورتونو (اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ الخ) سره قنوت وئيلى وو۔

**فائده:-** اگرچه په دے روايتونو كښې د قنوتِ نازله بيان دے ـ بيا هم د دے نه واضحه كيږى چه خلفائے راشدينو به الله ته قنوت كښې دا دُعا وئيله نو دا دُعا غوره ده۔

(۱۰) حضرت میمون بن مهران رحمۃ اللہ علیہ فرمائی:

فِیْ قِرَاءَۃِ اُبَیِّ بْنِ کَعْبٍ اَللّٰھُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُکَ الخ

د حضرت اُبَی بن کعب رضی پہ قرأت کښں دا دعاوه: اَللّٰھُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُکَ الخ

(اخرجہ ابن ابی شیبۃ ص۳۱۷ ج۲ ومحمد بن نصر)

(۱۱) ابو عبد الرحمٰن رحمۃ اللہ علیہ یو اوږد حدیث کښں فرمائیلی دی:

اِنَّ ابْنَ مَسْعُوْدٍ کَانَ یُقْرِئُھُمْ اِیَّاھَا وَیَزْعَمُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰہِ صلی اللہ علیہ وسلم کَانَ یُقْرِئُھُمْ اِیَّاھَا۔

(اخرجہ محمد بن نصر)

حضرت عبد اللہ بن مسعود رضی خپلو شاگردانو (ابو عبد الرحمٰن وغیره) ته قنوت اَللّٰھُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُکَ الخ ښودلو او حضرت ابن مسعود رضی به فرمائیل چه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم به هم خپلو صحابو رضی ته هم دا دُعا ښودلہ۔"

(۱۲) حضرت سُفیان رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

کَانُوْا یَسْتَحِبُّوْنَ اَنْ یَّجْعَلُوْا فِیْ قُنُوْتِ الْوِتْرِھَا تَیْنِ السُّوْرَتَیْنِ اَللّٰھُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُکَ وَ اَللّٰھُمَّ اِیَّاکَ نَعْبُدُ اھ۔

(اخرجہ محمد بن نصر)

د حضرت سُفیان رح د وخت عالمانو قنوتِ وترکښں دا دوه سورتونه ویل مستحب گڼڼل: اَللّٰھُمَّ اِنَّا نَسْتَعِیْنُکَ الخ او اَللّٰھُمَّ اِیَّاکَ نَعْبُدُ الخ۔

(۱۳) حضرت ابراھیم نخعی تابعی رح فرمائیلی دی:

یَقْرَءُ فِی الْوِتْرِ السُّوْرَتَیْنِ اَللّٰھُمَّ اِیَّاکَ نَعْبُدُ الخ۔ (انتہی ما

چه مونږ ئے به وترو کښں دا دوه سورتونه د قنوت دپاره لوستل: اَللّٰھُمَّ اِیَّاکَ الخ

فی الدر المنثور ص۴۲۰ ج۶ تا ص۴۲۲ ج۶ ملخصًا مع زیادۃ ما، معارف السنن شرح الترمذی ص۲۳ ج۴)

(۱۴) علامہ ابن رشد مالکی رحمۃ اللہ علیہ بدایۃ المجتہد ص۱۳۲ ج۱ کښں فرمائیلی دی:

إِنَّهُ اِسْتَحَبَّ الْقُنُوْتَ مَالِكٌ اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ الخ۔
(معارف السنن ج۴ ص۲۴۵)

حضرت امام مالکؒ هم اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ الخ والا دُعا ته افضل او مُستحب وئیلی دی۔

(۱۵) علامه ابنِ قُدامه حنبلی رحمۃ اللہ علیہ د فقه حنبلی مشهور کتاب: "المغنی ج۱ ص۷۸۴" با ندِ لیکلی دی: ا

وَهَاتَانِ سُوْرَتَانِ فِيْ مُصْحَفِ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍؓ۔

اودا دوه سورتونه: اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ الخ او اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ الخ د اُبی بن کعبؓ په مُصحف کښ وُو۔

همدارنګه لیکی چه حضرت عمرؓ به دا دُعا وئیله۔

## د سُنتو او نفلونو اهتمام

(۲۲۵) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنْ عَمَلِهٖ صَلٰوتُهٗ فَاِنْ صَلَحَتْ فَقَدْ اَفْلَحَ وَاَنْجَحَ وَاِنْ فَسَدَتْ فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ فَاِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيْضَتِهٖ شَيْءٌ قَالَ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى اُنْظُرُوْا هَلْ لِعَبْدِيْ مِنْ تَطَوُّعٍ فَيُكَمَّلُ بِهَا مَا

حضرت ابُوهُریره رضی اللہ عنہ فرمائی چه ما د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم نه آوریدلی دی چه د قیامت په ورځ به د ټولو نه اول د بنده د اعمالو نه د مونځ حساب اخستے شی۔ که چرے مونځ صحیح وُو نو بنده کامیاب شو او که چرے مونځ خراب وُو نو بنده ناکام شو۔ که چرے د ده د فرضونو نه څه مونځ ناقص وُو، نو الله تعالیٰ به اُوفرمائی چه اُوګورئ ځما د بنده څه نفل مونځ شته دے؟ نو د دغے نفلونو نه به د فرضونو کمے پوره کړی شی

اِنْتَقَصَ مِنَ الْفَرِيضَةِ ثُمَّ يَكُوْنُ سَائِرُ عَمَلِهِ عَلٰى ذٰلِكَ وَفِيْ رِوَايَةٍ ثُمَّ الزَّكٰوةُ مِثْلُ ذٰلِكَ ثُمَّ تُؤْخَذُ الْاَعْمَالُ حَسْبِ ذٰلِكَ۔ (ترمذی ص۵۵ ج۱، ابوداؤد، مشکوٰۃ ص۱۱۷ باب صلوٰۃ التسبیح)

بیا نور عملونه په هم دا رنګ وی۔ او په یو روایت کښ دی بیا به د زکوٰۃ حساب هم دا رنګ اوشی بیا به د ټولو اعمالو حساب هم دا رنګ اوشی۔

(۴۴۶) حضرت ام حبیبه رضی الله عنها فرمائیلی دی:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى فِيْ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً بُنِيَ لَهٗ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ اَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ۔ (ترمذی ص۵۶ ج۱، نسائی، مشکوٰۃ باب السنن)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه څوک شپه او ورځ کښ دولس رکعته (سنت) اوکړی د ده د پاره په جنت کښ یو کور جوړشی۔ څلور رکعته د ماسپخین نه مخکښ او دوه رکعته روستو او دوه رکعته د ماښام نه روستو او دوه رکعته د ماسخوتن د فرضونه روستو او دوه رکعته د سحر د مانځه نه مخکښ۔

(۴۴۷) د دے مضمون مرفوع حدیث د حضرت عائشے رضی الله عنها نه هم په ترمذی ص۵۵ ج۱ کښ روایت دے۔

**فائده:-** د احادیثو او آثارو نه چه څو مره سنت او نفل ثابت دی هغه ټول په اهتمام سره کول پکار دی خاصکر د تهجد مونځ، اشراق چاشت، د حاجت مونځ، د توبے مونځ، آوابین تحیة الوضوء، تحیة المسجد، د استخارے مونځ، د تسبیح مونځ یعنی صلوٰۃ تسبیح وغیره۔

**د تراویح مونځ** | د تراویحو مونځ په احادیثو کښ په قیام رمضان

سره تعبیر کړے شوید ے . نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم پخپله د تراویحو مونځ سنت کوونکے دے او دهغے ترغیب ئے ورکړید ے .

(۴۴۸) د حضرت عبد الرحمٰن رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی فَرَضَ صِيَامَ رَمَضَانَ عَلَيْكُمْ وَسَنَنْتُ لَكُمْ قِيَامَهٗ . (نسائی ج۱ ص۳۰۸، ابن ماجه)

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم فرمائیلی دی بیشکه الله تعالیٰ تاسو باندِ د رمضان روژے فرض کړے او ما په یکښ اُودریدل (د تراویحو مونځ) سنت اُوګرځولو.

(۴۴۹) د حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ مرفوع حدیث دے :

اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم قَالَ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَلَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ . (مسلم ج۱ ص۲۵۹، بخاری، مشکوٰة ص۱۱۴)

څوك چه ایمان او طلب د ثواب د پاره په رمضان کښ تراویح اوکړی نو دهغه د رومبنی ټول ګناهونه به معاف کړے شی.

(۴۵۰) د حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ دوئیم مرفوع حدیث دے :

قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم يُرَغِّبُ فِيْ قِيَامِ رَمَضَانَ .

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم به د قیامِ رمضان (د تراویحو د مونځ) ترغیب ورکولو.

(مسلم ج۱ ص۲۵۹، باب الترغیب فی قیام رمضان وھو التراویح)

(۴۵۱) د حضرت عائشه رضی اللہ عنہا مرفوع حدیث دے :

اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم كَانَ يُرَغِّبُ النَّاسَ فِيْ قِيَامِ رَمَضَانَ . (نسائی ج۱ ص۳۰۷)

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم به خلقو ته د تراویحو ترغیب ورکولو.

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم به د رمضان میاشت کښ ټوله شپه په عبادت کښ تیروله . بستره به دهغوی د آرام کولو نه ناآشنا وه .

(۲۵۲) حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی:

كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم إِذَا دَخَلَ رَمَضَانُ لَمْ يَأْتِ فِرَاشَهُ حَتّٰى يَنْسَلِخَ۔ (بیہقی)

چه کله به د رمضان میاشت راغله نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به خپلے بسترے ته نه راتلو تر دے چه د رمضان میاشت به تیره شوه۔

## تراویح په جمع سره کول

نبی کریم صلی الله علیه وسلم به پخپله پوره رمضان کښ د شپے په مانځه کښ مشغول وو۔ او اُمت ته به ئے هم د قیام رمضان (د تراویحو ترغیب ورکولو لیکن د تراویحو په جمع باندِ هغوی همیشوالے نۀ دے کړے۔ د هغوی د همیشوالی نۀ کولو دا وجه ؤ فرمائیله چه چرته دا په اُمت باندِ فرض نشی۔ هغوی به د یوے یوے شپے په ځن اوالی او وقفے سره درے شپے (۲۳، ۲۵، ۲۷ رمضان) په جمع سره تراویح کړی۔ په اوله شپه دریمے حصے پورے، په دویمه شپه ترنیمے شپے پورے او په دریمه شپه ترصباختو پورے د تراویحو مونځ کولو تردے پورے چه صحابه کرام رضی الله عنهم ته د پیشمنی د ختمیں و ویره شوه۔

(۲۵۳) د حضرت ابوذر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ صُمْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صلى الله عليه وسلم رَمَضَانَ فَلَمْ يَقُمْ بِنَا شَيْئًا مِّنَ الشَّهْرِ حَتّٰى بَقِيَ سَبْعٌ فَقَامَ بِنَا حَتّٰى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ فَلَمَّا كَانَتِ السَّادِسَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا ...... فَلَمَّا كَانَتِ

حضرت ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د رمضان روژے نیولے نو هغوی مونږ ه سره د دے میاشتے په هیڅ حصه کښ مونږ سره قیام یعنی تراویح نۀ دی کړی تردے چه آخری اُووه شپے به باقی پاتے شوے

الْخَامِسَةُ قَامَ بِنَا حَتّٰى ذَهَبَ شَطْرُ اللَّيْلِ فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا...... فَلَمَّا كَانَتِ الثَّالِثَةُ جَمَعَ نِسَاءَهُ وَاَهْلَهُ وَالنَّاسَ فَقَامَ بِنَا حَتّٰى خَشِيْنَا اَنْ يَفُوْتَنَا الْفَلَاحُ قُلْتُ مَا الْفَلَاحُ قَالَ السُّحُوْرُ ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ۔

(ابوداود ج۱ ص۲۰۲، ترمذی، نسائی، ابن ماجه مسند امام احمد، مشکوٰة ص۱۱۴)

نو مونږ سره به ئے بیا قیام (د تراویحو مونځ) کوْلو ترڅو پورے چه دریمه حصه د شپې به تیره شوه۔ چه شپږمه شپه شوه نو هغوی مونږ سره شریک نهٔ وُو۔ بیا چه کله پنځمه شپه شوه.... نو نیمے شپې پورے مونږ سره په عبادت کښ مشغول وُو۔ بیا چه څلورمه شپه شوه نو هغوی مونږ سره شریک نهٔ شو۔ بیا چه دریمه شپه شوه نو نبی علیه السلام خپل کور والا او خلق را جمع کړل او مونږ سره (دیر وخته پورے) شریک وُو ترڅو پورے چه مونږ سره د فلاح د فوت کیدو خطره شوه۔ (راوی وائی چه) ما تپوس اُوکړو چه فلاح څهٔ ته وائی؟ حضرت ابوذر رضی الله عنه اُوفرمائیل، د فلاح نه پیشمنے مراد دے۔ بیا د میاشتے په باقی حصه کښ هغوی مونږ سره شریک نهٔ شو۔"

(۲۵۴) د حضرت عائشے رضی الله عنها په مرفوع حدیث کښ هم د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم درے شپې د تراویح کوْلو ذکر راغلے دے۔ د دے نه پس په جمع سره پابندی نهٔ کوْلو باره کښ د نبی علیه السلام دا ارشاد روایت شوے دے۔

لٰكِنِّىْ خَشِيْتُ اَنْ تُفْرَضَ عَلَيْكُمْ فَتَعْجِزُوْا عَنْهَا۔

(بخاری ج۱ ص۲۶۹، مسلم ج۱ ص۲۵۹)

لیکن ما ته دا ویره ده چه د تراویحو جمع په تاسو فرض نشی۔ بیا به ئے تاسو نشی کوْلے۔

(۲۵۵) د حضرت زید بن حارث رضی الله عنه مرفوع حدیث کښ دی چه

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم خوښې تراویح په جمع سره کړې وې. بیا دَ پابندۍ ختمولو لۀ دا وجه ارشاد اُوفرمائیلہ۔

خَشِیْتُ اَنْ یُکْتَبَ عَلَیْکُمْ وَلَوْ کُتِبَ عَلَیْکُمْ مَا قُمْتُمْ بِہٖ۔ (بخاری واللفظ للبخاری ج۱ و مسلم و مشکوٰۃ ص۱۱۴)

ماته دا ویره شوه چه په تاسو به فرض شی او که چرے فرض شو نو تاسو به ئے بیا نشی کولے۔

(۲۵۶) عَنْ عَائِشَۃَ قَالَتْ کَانَ النَّاسُ یُصَلُّوْنَ فِیْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰہِ صلی اللہ علیہ وسلم فِیْ رَمَضَانَ بِاللَّیْلِ اَوْزَاعًا یَکُوْنُ مَعَ الرَّجُلِ الشَّیْءُ مِنَ الْقُرْاٰنِ فَیَکُوْنُ مَعَہُ النَّفَرُ الْخَمْسَۃُ اَوِ السِّتَّۃُ وَاَقَلُّ مِنْ ذٰلِكَ وَاَکْثَرُ یُصَلُّوْنَ بِصَلٰوتِہٖ اھ۔ (ابوداؤد وسکت علیہ ہو والمنذری، اوجز المسالک شرح موطا امام مالک ج۱ ص۳۸۷)

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه د نبی علیه السلام په جمات کښ خلقو د روژے د میاشتے په شپه کښ جدا جدا مونځ کولو۔ یو سړی سره د قرآن مجید څۀ حصه (پاره) وه نو پنځه یا شپږ سړو یا کم یا زیات نو د هغۀ سره مونځ کولو۔

(۲۵۷) حضرت اُبی بن کعب رضی الله عنه د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم په زمانه کښ تراویح په جمع سره کړی‌لے۔ نبی علیه السلام دے کار ته ښۀ وئیلی وُو۔

د ثعلبه بن مالک اَلْقُرَظِیؓ نه روایت دے:

خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صلی اللہ علیہ وسلم ذَاتَ لَیْلَۃٍ فِیْ رَمَضَانَ فَرَاٰی نَاسًا فِیْ نَاحِیَۃِ الْمَسْجِدِ یُصَلُّوْنَ فَقَالَ مَا یَصْنَعُ

حضرت ثعلبهؓ فرمائی چه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په رمضان کښ یوه شپه د کوره بهر ته لاړو۔ نو وے کتل چه خلق د جمات په یو کنج کښ مونځ کوی۔

هٰٓؤُلَاۤءِ قَالَ قَائِلٌ يَّا رَسُوْلَ اللهِ هٰٓؤُلَاۤءِ نَاسٌ لَيْسَ مَعَهُمْ الْقُرْاٰنُ وَ اُبَيُّ ابْنُ كَعْبٍ يَقْرَءُ وَهُمْ مَعَهٗ يُصَلُّوْنَ بِصَلٰوتِهٖ قَالَ قَدْ اَحْسَنُوْا وَ قَدْ اَصَابُوْا۔ (رواه البيهقي في المعرفة وإسناده جيد وأخرجه أيضاً في السنن الكبرى بطرق أوجز المسالك شرح موطا امام مالک ج۱ ص۳۸۷، آثار السنن ص۲۴۷)

هغوی تپوس اُوکړو چه دا خلق څه کوی۔ یو سړی ورته اُووئیل چه دے خلقو ته قرآن یاد نه دے۔ دا خلق د حضرت اُبی بن کعب سره مونځ کوی نو هغوی اُوفرمائیل چه دوی ښه کوی او صحیح کوی۔

**فائده**:۔ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مبارکه زمانه کښ د وحی راتلل جاری وُو۔ د تراویحو په جمع باندې همیشوالے د هغے د فرض کیدو ویره وه هغوی د صحابه کرامو د ډیر شوق باوجود په جمع سره تراویح کولو عذر اُوکړو۔ د هغوی د وفات نه پس چه د وحی سلسله ختمه شوه۔ د فرضیت ویره پاتے نه شوه۔ نو حضرت عمر رضی الله عنه (چه د هغوی علم د علم نبوت تتمه وه بخاری ج۱ ص۱۷ باب فضل العلم او ص۵۲۰ ج۱ مناقب عمر) د نبی کریم صلی الله علیه وسلم منشاء پوره کولو د پاره تراویح په جمع سره باقاعده انتظام اُوکړو۔ حضرت اُبی بن کعب رض ئے د تراویح په جمع سره کولو د پاره امام مقرر کړو۔

(۲۵۸) د صحیح بخاری د حدیث الفاظ دا دی:

فَجَمَعَهُمْ عَلٰی اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رض (بخاری ج۱ ص۲۶۹)

حضرت عمر رض خلق د حضرت اُبی بن کعب رض په امامت باندې راجمع کړل۔

## د تراویحو شل رکعته

د تمهید په طور باندې عرض کوو چه صحابه کرام رض د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم براه راست

تربیت یافته وو. د وحی مزاج شناس او د نبوّت مزاج شناس وو
یعنی د وحی او نبوّت مزاج ئې پیژندو. د الله تعالیٰ او رسول الله
صلی الله علیه وسلم نه ورته علم او عمل او د دین په پوهه یا ندې پوره اعتماد وو.
په قرآن او حدیث بې شماره نصوص کښې د دغه اعتماد اظهار او
اعلان کړې شوی دے.

د الله تعالیٰ ارشاد دے:

(۲۵۹) وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ (التوبہ ۱۰۰)

او کوم مُهاجرین او انصار چه (په ایمان راوړو کښې) اُوړاندې دی او کوم خلقو چه په اخلاص سره د دوی تابعداری اُوکړه الله تعالیٰ د هغوی نه راضی دے.

د دې ایت نه دا ثابته شوه چه صحابه کرامؓ مهاجرینؓ او انصارؓ
تابعداری الله تعالیٰ ته خوښه ده او د الله تعالیٰ د رضا سبب دے.

(۲۶۰) د الله تعالیٰ ارشاد دے:

مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا. (الفتح ۲۹)

محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالیٰ رسول دے او د هغهٔ ملګری په کافرانو باندې سخت او خپلو کښې مهربانه دی. اے مخاطبه! ته به هغوی په رکوع او سجدو کښې وینې او د الله تعالیٰ د فضل او رضا طلبګار دی.

دا ایتِ کریمه د صحابه کرامؓو د عبادت او اخلاص او پاکیزه

---

عه دا مضمون په ابتداء کښې هم تیر شویدے. د اهمیت د پاره د دے تکرار په برداشت کوئ. منه.

جن باتو غږته ګواهي ده.

(۴۶۱) د حضرت عرباض بن ساریه رضي الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ الْمَهْدِيِّيْنَ تَمَسَّكُوْا بِهَا وَعَضُّوْا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه ځما طریقه او ځما د هدایت موندونکو خلفاءِ راشدینو طریقه لازمه اونیسی او په دے باندِ عمل اوکړی او د چا منے په غاښونو ئے کلکه او مضبوطه ونیسئ.

(ترمذی ص۹۲ ج۲، ابوداود ج۲ ص۲۸۷، باب فی لزوم السنة، ابن ماجه، وقال الترمذی حدیث حسن صحیح، مشکوٰة ص۲۹)

(۴۶۲) د حضرت حذیفه رضي الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا اَدْرِيْ مَا بَقَائِيْ فِيْكُمْ اِقْتَدُوْا بِالَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِيْ اَبُوْبَكْرٍ رض وَعُمَرَ رض.

(ترمذی ج۲ ص۲۰۷، ابن ماجه، مسند امام احمد، مشکوٰة ص۵۶)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي ما ته معلومه نه ده چه څه به څومره وخت تاسو سره ژوندے یم. ځما نه پس د حضرت ابوبکر رض او د حضرت عمر رض پیروی کوئ.

(۴۶۳) د حضرت ابن عمر رضي الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ الْحَقَّ عَلٰی لِسَانِ عُمَرَ رض وَقَلْبِهٖ.

(ترمذی ج۲ ص۲۰۹، مشکوٰة ص۵۵۷)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه الله تعالیٰ د حضرت عمر رض په ژبه او زړه باندِ حق ایښودی دی.

دا حدیث د حضرت ابن عمر رض نه علاوه د دے لاندینی صحابو رض نه هم روایت شویدے:

(۴۶۴) د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه په ابوداود او مسند احمد کښ.

(۴۶۵) د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه په مسند امام احمدؒ، مستدرک حاکم او مسند ابویعلیٰ کښ (۴۶۶) د حضرت بلالؓ نه او (۴۶۷) حضرت مُعاویه رضی الله عنه نه په طبرانی کښ. (اوجز المسالک شرح مؤطا امام مالک ص ۳۹۷/۱۲۰)

(۴۶۸) د حضرت عمران بن حُصَین رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خَیْرُ اُمَّتِیْ قَرْنِیْ ثُمَّ الَّذِیْنَ یَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِیْنَ یَلُوْنَهُمْ. (بخاری ص ۵۱۵/۱۲ باب فضائل اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم، مسلم، مشکوٰة ص ۵۵۳)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه تما د اُمت غوره خلق تما د زمانے خلق دی (صحابهؓ) بیا هغه خلق چه دوی سره نزدے دی (تابعینؒ) او بیا هغه خلق چه دوی سره نزدے دی (تبع تابعینؒ)

د کتاب او سُنّت د دے نُصوصو او هدایاتو نه واضحه شوه چه صحابه کرامؓ خاصکر د خلفائے راشدینو آثار هم شرعی دلیل دے.

آئمهٔ اربعه او جمهور علمائے اسلام همیشه د صحابهؓ او تابعینوؒ د آثارو نه هم د ضرورت مطابق استدلال کوی. امام بخاریؒ په صحیح بخاری کښ مختلف بابونو کښ د صحابوؓ، تابعینو وغیرهم یو زر شپږ سوه آته ۱۶۰۸ آثار د استدلال په طور ذکر کړیدی. (فتح الباری شرح بخاری ص ۴۵۲/۱۳ خاتمة الکتاب)

څنګه چه د ملک د قانون په تشریح کښ د سُپریم کورټ او هائی کورټ فیصلے او د هغے د جج صاحبانو تحقیقات او رائے او خبرے د لاندے عدالتونو د پاره په ټوله دنیا کښ حُجت او دلیل منلے شی، همدغه رنګ د قرآن او حدیث په تشریح کښ د صحابوؓ، تابعینوؒ او تبع تابعینوؒ آثار او اقوال هم د پاس ذکر شوی کتاب او سُنت د نصوصو او هدایاتو په بناء بائد درجه په درجه حُجّت او دلیل دے د دے تمهید نه پس په اصل مسئله بائد غور اُوکړئ.

دکتاب او سُنت د بې شماره نصُوصونه ثابتیږي چه د رمضان میاشت د نورو یوولسو میاشتو نه غوره ده. دا مبارکه میاشت د عبادت د پاره خاص ده. د دې ورځ په روژه او تلاوت کښې او د دې شپې مانځه او نورو عباداتو کښې تیرولې شي. چنانچه نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په دې مبارکه میاشت کښې شوګیرې کولې. نو له شپه به په عبادت کښې لګیا وو. او نورو ته به ئې هم په ډیر اهتمام سره دقیامِ رمضان (یعنې د تراویحو) ترغیب ورکولو. څو شپې هغوی ص تراویح په جمع سره هم کړې وې. یوه شپه خو ئې تر پیشمنې پورې په جمع سره تراویحو کښې تیره کړې وه لیکن د دې ویرې نه ئې د جمع همیشوالې او پابندي اُونکړله چه په اُمت بانې فرض نشي او بیا به ئې اُمت کولې نشي.

د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه پس د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت دَور او زمانه ډیره لنډه وه چه د جهاد په مشغلو کښې او د مُسَیْلَمهٔ کذّاب پشان فِتنو ختمولو کښې تیره شوه. حضرت ابُوبَکر صدیق رضی الله عنه ته د ورو مسئلو طرفته متوجه کیدو وخت ملاؤ نشو. حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت د زمانې اوله حصه هم دغه شان مسئلو حل کولو کښې تیره شوه. حضرت فاروقِ اعظم رضی الله عنه چه کله جهاد د کارونو او مسئلو نه لږ اُوزګار شو نو دوی رض د تراویحو په شان مسئلو طرفته توجُّه اُوکړه او هغه ئې حل کړه. هغوی رض حضرت اُبَيّ بن کعب رض په مسجدِ نبوی ص کښې امام مقرر کړو. د هغوی رض پاکه زمانه کښې د شل رکعتو تراویحو په جمع سره کولو اهتمام شروع شو او هیڅ یو صحابي رض په دې اعتراض اُونکړو. لکه چه په

دے د صحابه کرامو اجماع اُوشوه - دهغوی نه پس د حضرت عثمانؓ او حضرت علیؓ په خلافت کښې هم مُسلسل په شلو رکعتو تراویحو باندې عمل شروع وو. د صحابوؓ او تابعینوؒ مُسلسل عمل په شلو رکعتو تراویحو باندې وو. څنګه چه اَئمّه اَربعه؛ امام ابو حنیفهؒ، امام شافعیؒ، امام مالکؒ او امام احمد بن حنبلؒ په اتفاق سره کړې وې - د څوارلس سوو کالو نه د جمهور اُمت عمل په شلو رکعتو باندې راروان دے۔

دے تفصیل د پاره دلاندې یې شواهد اُوګورئ:

(۴۶۹) د حضرت سائب بن یزید صحابی رضی الله عنه نه روایت دے:

قَالَ كَانُوْا يَقُوْمُوْنَ عَلٰی عَهْدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فِیْ شَهْرِ رَمَضَانَ بِعِشْرِیْنَ رَكْعَةً۔ (سنن کبرٰی بیهقی ج۲ ص۴۹۶، قال النووی الشافعیؒ فی شرح المهذب ج۴ ص۳۲، اِسْنَادُهٗ صَحِیْحٌ۔)

د حضرت عمر بن خطابؓ په دورِ خلافت کښې به خلقو (صحابوؓ او تابعینوؒ) د رمضان په میاشت کښې شل رکعته تراویح کول۔

ډیرو حُفاظو مُحدّثینو دا حدیث صحیح منلے دے. علامه نووی شافعیؒ په خپل کتاب "خلاصة" کښې، محدث ابن العراقی په "شرح التقریب" کښې، علامه سیوطی په "المصابیح" کښې دے حدیث ته صحیح وئیلی دی. (اوجز المسالک ج۱ ص۳۹۷، حاشیه آثار السنن ص۲۵۱)

(۴۷۰) د بیهقی په یو روایت کښې دا الفاظ هم دی:

وَعَلٰی عَهْدِ عُثْمَانَؓ وَعَلِیٍّؓ مِثْلَهٗ۔ د حضرت علیؓ او د حضرت عثمانؓ په دورِ خلافت کښې هم د فاروقؓ دور په شان شل رکعته کول۔

(۴۷۱) د حضرت سائب بن یزید رضی الله عنه دویم حدیث دے،

قَالَ كُنَّا نَقُوْمُ فِیْ زَمَانِ عُمَرَ بِعِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔ مونږ به د حضرت عمرؓ په زمانه کښې شل رکعته تراویح کول۔

(اخرجه البیهقی فی معرفة الآثار والسنن)

محدث نووی شافعیؒ «خلاصه» کښې فرمائیلی دی:

اِسْنَادُهٗ صَحِيْحٌ۔ "د دے سند صحیح دے۔ (نصب الرایه ص۱۵۲ ج۲)

(۲۷۲) د حضرت یزید بن رومان تابعیؒ نه روایت دے:

كَانَ النَّاسُ يَقُوْمُوْنَ فِیْ زَمَانِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فِیْ رَمَضَانَ بِثَلٰثٍ وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔ د حضرت عمر بن خطابؓ په زمانه کښې به خلقو د رمضان په میاشت کښې درویشت ۲۳ رکعته کول۔

(بیهقی ج۲ ص۴۹۶، موطا امام مالکؒ ص۹۸ مرسل قوی)

محدث بیهقی شافعیؒ د دے په تشریح کښې فرمائیلی دی چه په دیکښې شل رکعته تراویح وُو او درے رکعته وتر وُو۔ (بیهقی ج۲ ص۴۹۶)

(۲۷۳) د حضرت یحییٰ بن سعیدؒ نه روایت دے:

اِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ اَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّیْ بِهِمْ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔ حضرت عمر رضی الله عنه یو سړی ته حکم اوکړو چه هغه د خلقو ته شل رکعته تراویح کوی۔

(مصنف ابن ابی شیبه ج۲ ص۳۹۳، آثار السنن ص۲۵۲)

داخبره واضحه دی چه مصنف ابن ابی شیبهؒ د امام بخاری او امام مسلم د اُستاذانو نه دے۔ (تهذیب التهذیب ج۶ ص۲ لابن حجرؒ)

(۲۷۴) د حضرت اُبی بن کعب رضی الله عنه نه روایت دے:

اِنَّ عُمَرَ اَمَرَهٗ اَنْ يُّصَلِّیَ بِاللَّيْلِ فِیْ رَمَضَانَ فَصَلّٰی بِهِمْ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔ (کنز العمال ج۴ ص۲۸۴) حضرت عمرؓ حضرت اُبی بن کعب نه د رمضان په شپو کښې د مونځ ورکولو حکم اُوکړو نو حضرت اُبی بن کعبؓ ...

اوجز المسالک ص۳۹۸ ج۱، مسند ابن منیع) شل رکعته مونږ اوکړو۔

(۴۷۵) د حضرت محمد بن کعب قرظی تابعیؒ نه روایت دے:

كَانَ النَّاسُ يُصَلُّوْنَ فِيْ زَمَانِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فِيْ رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً

خلقو به د حضرت عمر بن خطابؓ په زمانه خلافت کښې په رمضان کښې شل رکعته کول۔

(قیام اللیل للمحدث محمد بن نصر)

(۴۷۶) حضرت عبد العزیز بن رفیع تابعیؒ فرمائی:

كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ فِيْ رَمَضَانَ بِالْمَدِيْنَةِ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَيُوْتِرُ بِثَلَاثٍ۔

حضرت ابی بن کعبؓ به د روژے په میاشت کښې مدینه منوره کښې خلقو ته شل رکعته کول او درے رکعته وتر به ئے کول۔

(مصنف ابن ابی شیبة ص۳۹۳ ج۲)

(۴۷۷) حضرت ابو عبد الرحمن سلمی تابعیؒ د حضرت علی کرم الله وجهه عمل ذکر کوی

دَعَا الْقُرَّاءَ فَأَمَرَ مِنْهُمْ رَجُلًا يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔

حضرت علیؓ قاریان راجمع کړل او په هغوی کښې ئے یو سړی ته حکم اُوکړو چه هغه دِ خلقو ته (د رمضان په میاشت کښې) شل رکعته اُوکړی۔"

(بیهقی ص۴۹۶ ج۲)

(۴۷۸) حضرت ابو الحسناء رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

إِنَّ عَلِيًّا أَمَرَ رَجُلًا أَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ خَمْسَ تَرْوِيْحَاتٍ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔

حضرت علیؓ یو سړی ته حکم اوکړو چه خلقو ته په پنځه ترویح یعنی شل رکعته اُوکړه۔

(بیهقی ص۴۹۷ ج۲، ابن ابی شیبة)

(۴۷۹) د حضرت ابو الحسن رحمة الله علیه نه روایت دے:

إِنَّ عَلِيًّا أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔ (مصنف ابن ابی شیبہ ۳۹۳/۲ فی نسخۃ)

حضرت علیؓ یو سړی ته حکم اُوکړو چه هغه دخلقو ته شل رکعته اُوکړی۔

(۴۸۰) دحضرت حسن بن عبد العزیز رحمۃ اللہ علیہ نه روایت دے:

إِنَّ أُبَيًّا كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ بِالْمَدِيْنَةِ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔ (مصنف ابن ابی شیبہ ۳۹۳/۲)

حضرت اُبیؓ بن کعبؓ په مدینه منوره کښ په رمضان کښ خلقو ته شل رکعته کوّل۔

(۴۸۱) عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ يُصَلِّي لَنَا فِي شَهْرِ رَمَضَانَ ...... قَالَ الْأَعْمَشُ كَانَ يُصَلِّي عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَيُوْتِرُ بِثَلَاثٍ۔

حضرت زید تابعیؒ فرمائیلی دی چه حضرت عبد اللہ بن مسعودؓ په رمضان کښ مونږ ته مونځ راکولو۔ د زیدؒ شاگرد حضرت اعمشؒ فرمائی چه حضرت عبد اللہ بن مسعودؓ به شل رکعته کوّل او وِتر به ئے درے رکعته کوّل۔

(قیام اللیل لمحمد بن نصرؒ، عمدۃ القاری شرح بخاری ۱۲۷/۱۱)

(۴۸۲) عَنْ عَطَاءٍ قَالَ أَدْرَكْتُ النَّاسَ وَهُمْ يُصَلُّوْنَ ثَلَاثًا وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً بِالْوِتْرِ۔

حضرت عطاء تابعیؒ فرمائی، ما خلق (صحابهؓ او تابعینؒ) اُوموندل چه هغوی وترو سره درویشت ۲۳ رکعته کوّل۔

(مصنف ابن ابی شیبہ ۳۹۳/۲ سند حسن، قیام اللیل لمحمد بن نصرؒ)

(۴۸۳) حضرت ابو الخصیب رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

كَانَ يَؤُمُّنَا سُوَيْدُ بْنُ غَفَلَةَ فِي رَمَضَانَ فَيُصَلِّي خَمْسَ تَرْوِيْحَاتٍ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً۔

حضرت سُوید بن غفلهؒ په رمضان المبارک کښ زمونږ امام جوړیدو نو شل رکعته تراویح به ئے کوّلے۔

(بیہقی ص۴۹۶ ج۲، سند حسن)

**فائدہ:-** حضرت سوید بن غفلہ د خلفائے راشدین خاص شاگرد او دلویو تابعینو نہ دے۔ (تہذیب التہذیب ص۲۷۸ ج۴)

(۴۸۴) حضرت نافع بن عمر رضی اللہ عنہ فرمائیلی دی:

كَانَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ[1] يُصَلِّي بِنَا فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً۔

حضرت ابن ابی ملیکہ رح بہ مونږ تہ پہ رمضان کښں شل رکعتہ کول۔

(مصنف ابن ابی شیبہ ص۳۹۳ ج۲ سند صحیح)

(۴۸۵) حضرت سعید بن عبید رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

إِنَّ عَلِيَّ[2] ابْنَ رَبِيعَةَ كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ۔

حضرت علی بن ربیعہ رح خلقو تہ د رمضان پہ میاشت کښں پینځہ ترویحے (شل رکعتہ) کولے او وتر بہ ئے درے رکعتہ کول۔

(مصنف ابن ابی شیبہ ص۳۹۳ ج۲ بسند صحیح)

(۴۸۶) حضرت شتیر[3] بن شکل تابعی رحمۃ اللہ علیہ عمل روایت شوید ے۔

أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً۔

حضرت شتیر رح بہ د روژے پہ میاشت کښں شل رکعتہ کول۔

(قیام اللیل بیہقی، مصنف ابن ابی شیبہ ص۹۳ ج۲)

---

[1] دده نوم او نسب دا دے: عبد اللہ بن عبید اللہ بن ملیکہ مشہور تابعی دے د اتیا صحابو سرہ ئے ملاقات شوید ے۔ د حضرت ابن عباس رض، حضرت ابن عمر رض، حضرت عائشہ رض صدیقہ او نورو صحابہ کرامو نہ ئے علم حدیث حاصل کړیدے۔ (تہذیب التہذیب ص۳۰۶ ج۵) [2] علی بن ربیعہ تابعی دے۔ د حضرت علی رض او نورو صحابہ کرامو رض شاگردی ئے کړیدہ۔ (تہذیب التہذیب ص۳۲ ج۷) [3] شتیر بن شکل تابعی دے۔ د حضرت علی رض، عبد اللہ بن مسعود رض او نورو صحابہ کرامو نہ ئے علم حاصل کړیدے۔ (تہذیب التہذیب ص۳۱۱ ج۴)

(۲۸۷) د حضرت ابو البختری رحمة الله علیه عمل روایت شوی دے۔

انّهٗ کَانَ یُصَلِّیْ فِیْ رَمَضَانَ خَمْسَ تَرْوِیْحَاتٍ وَیُوْتِرُ بِثَلَاثٍ۔ (مصنف ابن ابی شیبة ج۲ ص۳۹۳)

حضرت ابو البختری تابعی رح د رمضان میاشت کښې پنځه ترویح (شل رکعته) کؤل او درے رکعته ئے وتر کؤل۔

(۲۸۸) د حضرت حارث رحمة الله علیه عمل مروی دے:

اِنَّهٗ کَانَ یَؤُمُّ النَّاسَ فِیْ رَمَضَانَ بِعِشْرِیْنَ رَکْعَةً۔ (مصنف ابن ابی شیبة ج۲ ص۳۹۳)

حضرت حارث رح به په روژه کښې خلقو ته شل رکعته کؤل۔

**فائده:-** د دے احادیثو او آثارو تفصیل په اوجز المسالك شرح مؤطا امام مالك ج۱ ص۳۹۷ او ص۳۹۸ او په حاشیه د آثار السنن ص۲۵۰ نه ص۲۵۴ پورې اوګورئ۔

د درے دوارو خلفائے راشدینو (یعنی حضرت عمر رض، حضرت عثمان رض، حضرت علی رض) د پاکے زمانے نه د صحابه کرامو، تابعینو او تبع تابعینو نه په تواتر سره مسلسل د شل رکعته تراویحو عمل ثابت دے۔ د ائمه اربعه او د هغوی متبعینو او د جمهور علماء هم دا مسلك دے۔ بعض محققینو په دے باندې اجماع نقل کړیدے۔ امام ترمذی شافعی رح په خپل جامع ترمذی کښې "باب قیام شهر رمضان" د عنوان لاندے د تراویح مسئله باندې بحث کوی:

وَاَکْثَرُ اَهْلِ الْعِلْمِ عَلٰی مَا رُوِیَ عَنْ عَلِیٍّ رض وَعُمَرَ رض وَغَیْرِهِمَا مِنْ اَصْحَابِ النَّبِیِّ صلی الله علیه وسلم عِشْرِیْنَ رَکْعَةً۔ (ترمذی ج۱ ص۹۹)

زیات اهلِ علم په شل رکعته تراویح باندې قائم دی چه د حضرت عمر رض، حضرت علی رض او نورو صحابو رض نه نقل شویدی۔

علامه عینی حنفیؒ په عُمْدَةُ الْقَارِی شرح د بخاری ج۱۱ ص۱۲۶ باندِ د شل رکعته تراویحو په باره کښ د امام ترمذیؒ دا ذکر شوے خبرے نقل کوی او فرمائی:

وَهُوَ قَوْلُ أَصْحَابِنَا الْحَنَفِيَّةِ

زمونږ د احنافو قول هم شل رکعته دے

علامه اِبْنِ عَبد البر مالکی د شل رکعته تراویحو باره کښ فرمائی:

وَهُوَ قَوْلُ جُمْهُورِ الْعُلَمَاءِ وَبِهِ قَالَ الْكُوفِيُّونَ وَالشَّافِعِيُّ وَأَكْثَرُ الْفُقَهَاءِ وَهُوَ الصَّحِيحُ عَنْ أُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ فِي الصَّحَابَةِ۔ (عمدة القاری ج۱۱ ص۱۲۷)

شل رکعته تراویح د جمهور علماؤ قول دے۔ د کوفے والا (احنافو او نورو محدثینو او فقهاؤ) امام شافعیؒ او د اکثرو فقهاؤ هم دا مسلک دے۔ د حضرت اُبَیّ بن کعبؓ نه په صحیح طریقے سره هم دا ثابت دی۔ د صحابه کرامو په دیکښ هیڅ اختلاف نه وو۔"

عَلامه اِبْنِ رُشد مالکی رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

فَاخْتَارَ مَالِكٌ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ وَأَبُوحَنِيفَةَ وَالشَّافِعِيُّ وَأَحْمَدُ وَدَاوُدُ الْقِيَامَ بِعِشْرِينَ رَكْعَةً سِوَى الْوِتْرِ۔ (بداية المجتهد ج۱ ص۲۱۰)

امام مالکؒ په یو قول امام ابوحنیفهؒ امام شافعیؒ، امام احمد بن حنبلؒ او داؤد ظاهری نه د وترو نه بغیر شل رکعته تراویح اختیار کړیدی۔

د امام مالکؒ دویم قول د شپږ دیرش رکعته تراویحو دے۔

علامه ابن حجر مکی شافعیؒ فرمائیلی دی:

اَجْمَعَ الصَّحَابَةُ عَلٰى اَنَّ التَّرَاوِيحَ عِشْرُونَ رَكْعَةً۔

د صحابه کرامو په شل رکعته تراویحو باندِ اجماع او اتفاق دے۔

(مرقات شرح مشکوٰة ص۱۹۴ ج ۳)

محدث ابنِ قدامه حنبلیؒ په المغنی ص۷۹۸ ج۱ باندِ د تراویحو موضوع تحقیق کوی او لیکلی ئے دی:

وَالْمُخْتَارُ عِنْدَ اَبِیْ عَبْدِاللهِ (اَلْاِمَامِ احمد بن حَنْبَلؒ) فِیْهَا عِشْرُوْنَ رَکْعَةً۔ — د امام احمد بن حنبلؒ په نزد شل رکعته تراویح غوره او قوی دی۔

په مغنی ص۷۹۹ ج۱ کښ په شل رکعته دلائل پیش کوی او فرمائی:

وَعَنْ عَلِیٍّؓ اَنَّهٗ اَمَرَ رَجُلًا یُصَلِّیْ بِهِمْ فِیْ رَمَضَانَ عِشْرِیْنَ رَکْعَةً وَ هٰذَا کَالْاِجْمَاعِ۔ — حضرت علیؓ یو سړی ته حکم اوکړو چه هغه دِ په رمضان کښ خلقو ته شل رکعته کوی دا په منزله د اجماع شو۔

علامه قسطلانی شافعیؒ په ارشاد الساری شرح بخاری ص۲۲۶ ج۳ باندِ د حضرت عمرؓ په دَورِ خلافت کښ په شل رکعته تراویح باندِ د صحابوؓ او تابعینوؒ عمل نقل کوی او فرمائیلی ئے دی:

وَقَدْ عَدُّوْا مَا وَقَعَ فِیْ زَمَنِ عُمَرَؓ کَالْاِجْمَاعِ۔ — د حضرت عمرؓ په زمانه خلافت کښ د شل رکعتو تراویحو واقعه په منزله د اجماع ده۔

علامه نووی شافعیؒ شرح المهذب ص۳۲ ج۴ باندِ بحث کولو په وخت لیکلی دی:

اِنَّهَا عِشْرُوْنَ رَکْعَةً ۔۔۔۔۔ هٰذَا مَذْهَبُنَا وَبِهٖ قَالَ اَبُوْحَنِیْفَةَ وَاَصْحَابُهٗ وَاَحْمَدُ — د تراویحو موضوع شل رکعته دے۔ زمونږ مذهب هم دغه دے۔ امام اَبُوحنیفهؒ او د دهٔ ملګری او امام احمد بن حنبلؒ

وَدَاوُدُ وَغَيْرُهُمْ وَنَقَلَهُ الْقَاضِي عِيَاضٌ (المالكي) عَنْ جُمْهُوْرِ الْعُلَمَاءِ۔

او امام داؤد ظاهری اؤ نورو علماؤ هم دا قول دے او قاضی عیاض مالکی هم د جمهور علماؤ همدا مسلک نقل کړیدے۔

حاصل دا چه شل رکعته تراویح د جمهور صحابو، تابعینو رح مسلسل عمل دے چه د اجماع یو شکل دے۔ د آئمه اربعه په دے باندِ اتفاق دے۔ د څوارلسو صدو راسے د کروړونو مسلمانانو په دے باندِ عمل راروان دے۔

قائده:- په بعضِ احادیثو او اثارو کښ د تراویح مونځ د شل رکعتو نه د کم ذکر هم راغلے دے۔ د محققینو په نزد دا سے روایات په اول دور باندِ حمل دی۔ اخری عمل د شلو رکعتو دے په دے باندِ دلیل د خُلفاءِ راشدینو مقدس او پاك دور کښ په شلو رکعتو باندِ د جمهور صحابو او تابعینو عمل کول اجماع ده۔ که چرے شل رکعته تراویح اخری عمل نه وے نو جمهور صحابه او تابعینو به بالکل او هیچرے نه وو اختیار کړے او په دے باندِ به ئے همیشه عمل نه کولو۔

محدث بیهقی شافعی رح د تراویحو بارہ کښ د مختلف روایاتو همدا توجیه کړیده۔

وَجَمَعَ الْبَيْهَقِيُّ بَيْنَهُمَا بِأَنَّهُمْ كَانُوْا يَقُوْمُوْنَ بِإِحْدَى عَشَرَةَ ثُمَّ قَامُوْا بِعِشْرِيْنَ وَأَوْتَرُوْا بِثَلَاثٍ۔

محدث بیهقی رح په دے مختلف روایاتو کښ دا تطبیق کړیدے چه هغه خلقو به یوولس رکعته کول بیا به ئے شل رکعته اوکړل او درے وتر به ئے کول۔

(ارشاد الساری شرح بخاری ص۲۶ ج۳ للمحدث القسطلانی الشافعی ، نصب الرایہ ص۱۵۳ ج۲ للمحدث الزیلعی الحنفی رح)

دامام بیهقیؒ دا توجیه او تطبیق په سُننِ کبریٰ د بیهقی مع الجوهری النقی ص۴۹۶ ج۲ بانډِ اُوګورئ۔

**فائده:-** په شل رکعته تراویحو بانډِ د حضرت ابن عباس رضی الله عنه مرفوع حدیث اګرچه د سند په لحاظ سره ضعیف دے لیکن بیا هم دا پاس ذکر شوی صحابهؓ او تابعینوؒ نه په شل رکعته عملی اجماع نه دوے بنیا د صحیح ثابتیږی۔ هغه مرفوع حدیث دا دے:

(۴۸۹) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ کَانَ یُصَلِّیْ فِیْ رَمَضَانَ بِعِشْرِیْنَ رَکْعَةً۔

حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائیلی دی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به په رمضان مبارک کښ شل رکعته کول۔

(بیهقی ص۴۹۶ ج۲، طبرانی کبیر ، معجم ، بغوی ، مسند عبد بن حمید ، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۹۴ ج۲)

## د سحر سُنت ډیر ضروری دی

د سحر دوه رکعته سُنت ډیر اهم دی۔

(۴۹۰) د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها مرفوع حدیث دے:

لَمْ یَکُنِ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَلٰی شَیْءٍ اَشَدَّ تَعَاهُدًا مِنْهُ عَلٰی رَکْعَتَیِ الْفَجْرِ۔

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم (په سنتو او نفلو کښ) د ټولو نه زیات اهتمام د سحر د دوؤ رکعتو سُنتو کولو وو۔

(بخاری ص۱۵۶ ج۱، مسلم ص۲۵۱ ج۱، مشکوٰة ص۱۰۴)

(۴۹۱) د حضرت ابو هریره رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدَعُوْا رَکْعَتَیِ الْفَجْرِ وَلَوْ طَرَدَتْکُمُ الْخَیْلُ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د سحر دوه رکعته (سنت) مه پریږدئ اګرچه آسونه تاسو زغلوی۔

(ابوداود صـ۱۸۶ ج ۱، مسند احمد)

**فائدہ:** کہ چرے سحر جمع ولاړہ وی او د سحر سنت هم اداکول وی نو د دواړو فضیلتونو (د سنت اداکول او جمع سره شریکیدل) د حاصلولو کوشش دِ اُوکړے شی نو د جمع د صف نه جُدا سنت اُوکړہ او بیا جمع سره شریک شه۔ او کہ چرے دا ویره وی چه د سُنت کولو سره جمع کیږی نو بیا جمع سره شامل شه او سُنت د نمر ختو نه روستو اُوکړہ۔ دے تفصیل د پارہ دا لاندینی احادیث او آثار اُوګورہ۔

(۴۹۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رض قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَّمْ یُصَلِّ رَکْعَتَیِ الْفَجْرِ فَلْیُصَلِّهِمَا بَعْدَ مَا تَطْلُعُ الشَّمْسُ۔

رسول الله صلی الله علیہ وسلم فرمائیلی دی چا چه د سحر سُنت نهٔ وی کړی نو هغهٔ له پکار دی چه نمر ختو نه پس ئے اُوکړی۔

(ترمذی صـ۹۶ ج ۱، مستدرک حاکم، دارقطنی، بیہقی، صحیح ابن حبان، صححه الحاکم واقرہ الذهبی)

(۴۹۳) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رض اَنَّهٗ صَلّٰی رَکْعَتَیِ الْفَجْرِ بَعْدَ الضُّحٰی۔

حضرت عبد الله بن عمر رض د سحر سنت د څاښت نه پس اُوکړل۔

(مصنف ابن ابی شیبة صـ۲۵۵ ج ۲ سندہٗ حسنٌ۔)

(۴۹۴) حضرت نافع رحمة الله علیه فرمائیلی دی:

اَیْقَظْتُ ابْنَ عُمَرَ رض لِصَلٰوةِ الْفَجْرِ وَقَدْ اُقِیْمَتِ الصَّلٰوةُ فَقَامَ فَصَلَّی الرَّکْعَتَیْنِ

چه ما حضرت عبد الله بن عمر رض د سحر د مانځه د پارہ پاڅولو ویخ مِ کړو حالانکہ جمع ولاړہ وہ نو حضرت ابن عمر رض اُودریدو او د سحر دوہ رکعته ئے اُوکړل۔

(طحاوی صـ۲۵۶ ج ۱ اسنادہٗ صحیحٌ)

د حضرت ابو دردا رضی الله عنه عمل نقل شوے دے۔

(۲۹۵) اِنَّهٗ كَانَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ وَالنَّاسُ صُفُوْفٌ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ فَيُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ فِي الصَّلٰوةِ۔

حضرت ابُودرداء رضی اللہ عنہ جمات کښې داخل شو نو خلق په صفونوکښې ولاړ وُو نو هغهٔ به د جماعت په گوټ کښې سنت اُوکړل نو بيا به خلقو سره په جمع کښې شامل شو۔

(الطحاوی ص۲۵٦ ج ۱ اسناده حسن)

(۲۹٦) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ جَاءَنَا ابْنُ مَسْعُوْدٍ رضی اللہ عنہ وَالْاِمَامُ يُصَلِّي الصُّبْحَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ اِلٰى سَارِيَةٍ وَلَمْ يَكُنْ صَلّٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ۔

حضرت عبد اللہ بن ابی موسیٰ فرمائیلی دی چه حضرت عبد اللہ بن مسعود رض مونږ سره راغلو نو امام د سحر مونځ ورکولو۔ د حضرت عبد اللہ بن مسعود رض نه د سحر سنت پاتے وُو نو هغهٔ يو ستنے سره سنت اُوکړل۔

(طبرانی کبیر، قال المحدث الهیثمی فی مجمع الزوائد رجاله موثقون)

د دے راوی ثقه اود اعتماد لائق دی۔ (مجمع الزوائد)

(۲۹۷) حضرت حارثه رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَرَكَعَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ رض رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ دَخَلَ مَعَ الْقَوْمِ فِي الصَّلٰوةِ۔

د سحر جمع ولاړه وه۔ حضرت ابن مسعود رض دوه رکعته سُنت اُوکړل۔ بيا خلقو سره (په جمع کښې) شریک شو۔

(مصنف ابن ابی شیبه ص۲۵۱ ج۲ اسناده صحیح)

(۲۹۸) حضرت ابو عثمان رحمۃ اللہ علیہ فرمائیلی دی:

كُنَّا نَاْتِيْ عُمَرَ ابْنَ الْخَطَّابِ قَبْلَ اَنْ نُصَلِّيَ الرَّكْعَتَيْنِ۔

مونږ به (کله کله) د سحر سنت کولو نه مخکښې د حضرت عمر بن الخطاب رض

قَبْلَ الصُّبْحِ وَهُوَ فِي الصَّلٰوةِ فَيُصَلِّيْ فِيْ اٰخِرِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ فِيْ صَلٰوتِهِمْ۔

په خدمت کښې حاضرېدو ۔ نو حضرت عمرؓ به مونځ ورکولو ۔ نو مونږ به د جماعت په اخر کښې سُنت کول بیا به خلقو سره (د جمع) مونځ کښې شامل شو.

(طحاوی ۲۵۶/۱ اسناده صحیح)

**کُنَّا نَاْتِيْ** د جمع صیغه دلالت کوی چه د حضرت عمرؓ په زمانه کښې دا حالت ډیر پیښیدو او د ډیرو خلقو عمل د دے مطابق وو۔

**فائده:۔** په بعض احادیثو کښې راغلی دی:

(۴۹۹) اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَلَا صَلٰوةَ اِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ۔

چه مونځ اُودریږی نو د فرض مونځ نه بغیر بل مونځ نشته۔

(مسلم ۲۴۷/۱ و سنن اربعه)

پورتنی احادیثو او اثارو په دلیل سره د دے مطلب او محمل دا شو چه سُنت د جمع په صف کښې نهٔ دی کول پکار چه سنت او د فرضو یو والے رانشی۔ د دے توجیه دویم دلیل پخپله د منع والا حدیث دا الفاظ دی چه د اِقامت نه پس سنت کولو والا ته نبی کریم صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل:

اَتُصَلِّي الصُّبْحَ اَرْبَعًا

ایا ته د سحر مونځ څلور رکعته کوے؟

(مسلم صفحه ۲۴۷ جلد اول)

بیو روایت کښې دی:

اَلصُّبْحُ اَرْبَعًا۔ "ایا ته د سحر څلور رکعته کوے۔"

(بخاری ص۹۱ جلد اول)

دځلور رکعته نقشه او شکل سنت او فرض یو ځائ کولو سره په وجود کښې راځي. که مطلق منع کول وي نو دا پاس ذکر شو وصحابهٔ کرامو به د اقامت نه پس سُنت نه کول۔

## د سحر د فرضونه پس د نمرختو نه مخکښې سُنت نهٔ کول

۵۰۰) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رض اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَهٰی عَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰی تَغْرُبَ الشَّمْسُ ؕ

رسول الله صلی الله علیه وسلم د سحر ما نځه نه پس د نمرختو پورې او د ماز یګر ما نځه نه پس تر نمر پریوتو پورې د مونځ کولو نه منع فرمائیلې ده۔

(بخاری ص۸۲ ج۱، مسلم ص۲۷۵ ج۱)

۵۰۱) حضرت ابن عباس رض یو مرفوع حدیث د حضرت عمر بن خطاب رض او نورو ډیرو صحابه کرامو په واسطه سره روایت کړیں دے۔

اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَهٰی عَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰی تَغْرُبَ الشَّمْسُ ؕ

رسول الله صلی الله علیه وسلم د سحر ما نځه نه پس تر نمرختو پورې او د ماز یګر ما نځه نه پس تر نمر پریوتو پورې د مونځ کولو نه منع فرمائیلې ده۔

(بخاری ص۸۲ ج۱، مسلم ص۲۷۵ ج۱ والبقیه صحاح سته)

۵۰۲) د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه

لَاصَلٰوۃَ بَعْدَ صَلٰوۃِ الْعَصْرِ حَتّٰی تَغْرُبَ الشَّمْسُ وَ لَا صَلٰوۃَ بَعْدَ صَلٰوۃِ الْفَجْرِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ۔

د مازیگر ماخُٹه نه پس نمر پریوتو پورے مونځ صحیح نهٔ دے اود سحر مانځه نه پس نمر ختو پورے مونځ صحیح نهٔ دے۔

(بخاری صـ۸۲/۱، مسلم صـ۲۷۵/۱)

(۵۰۳) د حضرت عمرو بن عبسه رضی اللہ عنه مرفوع حدیث دے:

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی اللہ علیه وسلم صَلِّ صَلٰوۃَ الصُّبْحِ ثُمَّ اَقْصِرْ عَنِ الصَّلٰوۃِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ...... حَتّٰی تُصَلِّیَ الْعَصْرَ ثُمَّ اَقْصِرْ عَنِ الصَّلٰوۃِ حَتّٰی تَغْرُبَ۔

رسول اللہ صلی اللہ علیه وسلم فرمائیلی دی چه د سحر مونځ کوئ بیا تر نمر ختو پورے د مونځ نه بند اُوسئ...... تر دے چه تهٔ د مازیگر مونځ اُوکړے بیا د نمر پریوتو پورے د مونځ نه بند اُوسئ۔

(مسلم صـ۲۷۶/۱، مسند امام احمد بن حنبل رح)

(۵۰۴) د حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنه مرفوع حدیث دے:

تُصَلِّی الصُّبْحَ ثُمَّ اجْتَنِبِ الصَّلٰوۃَ حَتّٰی تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ۔

(مسند اسحٰق بن راهویه رح)

نهٔ د سحر مونځ اُوکړه بیا نمر ختو پورے د مانځه نه بچ اُوسه یعنی مونځ مکوه۔

(۵۰۵) د حضرت معاذ بن عفراء رضی اللہ عنه مرفوع حدیث دے:

نَهٰی رَسُوْلُ اللهِ صلی اللہ علیه وسلم عَنِ الصَّلٰوۃِ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَبَعْدَ صَلٰوۃِ الْعَصْرِ حَتّٰی تَغْرُبَ الشَّمْسُ۔

رسول اللہ صلی اللہ علیه وسلم د سحر مانځه نه پس تر نمر ختو پورے او د مازیگر مانځه نه پس تر نمر پریوتو پورے د مونځ کولو نه منع فرمائیلے ده۔

(مسند اسحٰق بن راہویہ)

امام ترمذی رحمۃ اللہ علیہ په جامع ترمذی ص۲۵ ج۱ باندې "باب ما جاء فی کراهیة الصلوٰۃ بعد العصر وبعد الفجر" عنوان قائم کړے دے. او دغې دلائل دې لئے د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنه دغه پاس ذکر شوے حدیث راوړے دے.

د دے نه پس د عادت مطابق "وفی الباب" دلاندې د اتلسو صحابه کرامو رضی اللہ عنهم نومونه ئے لیکلی دی چه د هغوی د سحر او د مازیګر نه پس مونځ نه د منع کولو حدیثونه روایت شوی دی. د هغه الفاظ دا دی:

وَفِی الْبَابِ عَنْ عَلِیٍّ[۱] وَابْنِ مَسْعُوْدٍ[۲] وَاَبِیْ سَعِیْدٍ[۳] وَعُقْبَةَ[۴] بْنِ عَامِرٍ وَاَبِیْ هُرَیْرَةَ[۵] وَابْنِ عُمَرَ[۶] وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ[۷] وَسَلَمَةَ بْنِ الْاَکْوَعِ[۸] وَزَیْدِ بْنِ ثَابِتٍ[۹] وَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو[۱۰] وَمُعَاذِ بْنِ عَفْرَاءَ[۱۱] وَالصُّنَابِحِیِّ[۱۲] وَلَمْ یَسْمَعْ مِنَ النَّبِیِّ صلی اللہ علیہ وسلم وَعَائِشَةَ[۱۳] وَکَعْبِ بْنِ مُرَّةَ[۱۴] وَاَبِیْ اُمَامَةَ[۱۵] وَعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ[۱۶] وَیَعْلَی بْنِ اُمَیَّةَ[۱۷] وَمُعَاوِیَةَ[۱۸] رضی اللہ عنهم اجمعین.

د حضرت عمر بن الخطاب رضی اللہ عنه شاملولو سره شل نومونه جوړیږی.

علامه عینی رح په عمدۃ القاری شرح د بخاری ص۵۵ ج۵ باندې د ترمذی دغه مذکوره عبارت لیکلے دے او د پنځه نومونو زیاتوالے ئے کړیدے او لیکلی ئے دی:

وَفِی الْبَابِ اَیْضًا عَنْ سَعْدِ[۲۱] بْنِ اَبِیْ وَقَّاصٍ وَاَبِیْ ذَرٍّ[۲۲] الْغِفَارِیِّ وَاَبِیْ قَتَادَةَ[۲۳] وَاَبِی الدَّرْدَاءِ[۲۴] وَسَمُرَةَ[۲۵].

حافظ ابن حجرؒ شافعیؒ په التلخیص الحبیر ص۱۰۴ ج۲ مع شرح المهذب باندې د امام ترمذیؒ او علامه عینیؒ دغه ذکر شوی نوموونه بیان کړیدی او یو نوم ئے پکښ زیات کړیں ے او لیکلی ئے دی:

وَصَفْوَانِ ابْنِ الْمُعَطَّلِ رضی وَغَیْرَهُمْ۔

دخپل دَور عظیم او لوے محدث حضرت مولانا محمد یوسف بنوریؒ معارف السنن شرح ترمذی ص۹۶، ۹۷ ج۴ باندې دا پاس ذکر شوی نوموونه لیکلی دی او څلور نوموونه ئے زیات کړیدی۔

وَ فِی الْبَابِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بن عَوْفٍ رضی[۲۷] وَمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ رضی[۲۸] وَعبدِ الرحمٰن[۲۹] ابْنِ اَزْهَرَ رضی وَ اَبِی[۳۰] اُسَیْدٍ رضی فِی زوائد الهیثمی ص۲۲۷ ج۲ فَهٰؤُلَاءِ ثَلٰثُوْنَ نَفْسًا مِّنَ الصَّحَابَةِ یَرْوُوْنَ ذٰلِکَ۔

غرض دا چه د ډیرو صحابه کرامو رضی نه د سحر او ماز یګر مانځه نه پس د مانځه ادا کولو نه منع احادیثو نه روایت شویدی۔ دد ے وجے نه امام طحاویؒ، محدث ابن بطال مالکیؒ، علامه مناویؒ، علامه ابن عبدالبر مالکیؒ، علامه سیوطی شافعیؒ د اسے محققینو علماءِ اعلام د سحر او ماز یګر مانځه نه پس د مانځه د ممانعت احادیثو نه متواتر ویلی دی: (معارف السنن شرح ترمذی ص۱۲۱ ج۲)

**فائده:-** په یو حدیث کښ دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت قیس رضی ته د سحر مانځه نه پس د سنتو کولو اجازت ورکړے دو۔ (مشکوٰة ص۹۵، ابو داوُد، ترمذی، ابن ماجه)

محققینو د هغے دیر جوابونه کړیدی:

جواب ۱:- د جواز والا حدیث خبر واحد د ے او د ممانعت دا ذکر شوی احادیث متواتر دی۔ د محدثینو په اتفاق سره خبر متواتر

دخبرِ واحد نه غوره او راجح دی۔

جواب ۲ :- دممانعت د احادیثو نه د جواز والا حدیث د حضرت قیسؓ په خصوصیت باندې حمل دے۔

جواب ۳ :- دممانعت متواتر احادیثو سره دا خبرِ واحد منسوخ دے۔ (معارف السنن شرح ترمذی ص۹۹ ج۴)

جواب ۴ :- دا حدیث ضعیف دے۔ امام ترمذیؒ فرمائیلی دی اسناد هذا الحدیث لیس دَدے حدیث سند متصل نهٔ دے بمتصل۔ (ترمذی ص۹۵ ج۱)

## په پنځه مکروه وختونو کښې دوه رکعته د طواف او نفل منع دی

دجمهورو علماؤ په تحقیق سره ډلاندے وختونو کښې نفل مونځ او دوه رکعته دطواف منع دی:

۱:- د نمر ختو په وخت کښې۔

۲:- د غرمے چه نمر سرد پاسه شي۔

۳:- د نمر پریوتو په وخت کښې۔

۴:- د سحر مانځه نه پس نمر ختو پورے۔

۵:- د مازیګر مانځه نه پس نمر پریوتو پورے۔

د منع کیدو دلیل هغه متواتر احادیث دی چه د دیرش ۳۰ صحابهٔ کرامو رضی نه روایت شوی دی چه د هغے مفهوم مشترک دے:

لَا صَلٰوةَ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلَا بَعْدَ الْعَصْرِ

حَتّٰی تَغْرُبَ الشَّمْسُ الخ (صحاح ستہ وغیرہ)

په دیکښ د بعضِ په تفصیل سره او د بعضِ په اجمال سره بیان مخکښ تیر شو۔ همدارنګ دے وختونو کښ ممانعت دمانځه مطلق متواتر احادیثونه بغیر دا راتلونکی خاص احادیث هم دلیل دے

(۵۰۶) عَنْ مُعَاذِ بْنِ عَفْرَاءَ رض اِنَّهٗ طَافَ بَعْدَ الْعَصْرِ اَوْبَعْدَ الصُّبْحِ وَلَمْ یُصَلِّ فَسُئِلَ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ نَهٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰی تَغْرُبَ الشَّمْسُ۔

حضرت مُعَاذ بن عَفراء رضی الله عنه د مازیګر یا د سحر مانځه نه پس د طواف دوه رکعته نفل اونکړل نو دهغهٔ نه دے تپوس اُوشو نو هغهٔ ورته اُووئیل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د سحر مانځه نه پس تر نمر ختو پورے او د مازیګر مانځه نه پس تر نمر پریوتو پورے مونځ کولو نه منع فرمائیلے دهٔ۔

(مسند اسحٰق بن راهویه، مسند امام احمد ج۴ ص۲۱۹، بیهقی، اسناده حسن، آثار السنن ص۲۱۹)

حافظ ابن حجرؒ په " الاصابة ج۳ ص۴۲۸" بانڼ دوے دبعضِ سند نو دصحیح والی اعتراف کړیے دے۔ (حاشیه نصب الرایه ج۱ ص۲۵۳)

بیا دهغهٔ داعمل د صحابه کرامؓ د یو جماعت او دلے دوُیاندے وُو ایکن یو صحابی هم په دهٔ بانڼ اعتراض اُونکړو۔

(۷۰) وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رض اَنَّهٗ طَافَ بَعْدَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ فَرَکِبَ حَتّٰی صَلَّی الرَّکْعَتَیْنِ بِذِیْ طُوًی۔

حضرت عمر بن خطاب رض د سحر مونځ نه پس طواف اوکړو او بیا سور شو تر دے چه ذِی طُویٰ (مقام) ته اُورسید و نو د طواف دوه رکعته نفل ئے اُوکړل۔

(بخاري ص ۲۲۰ ج ۱ باب الطواف بعد الصبح والعصر معلقاً، موطا امام مالك وسنن بیهقي ج ۲ ص ۴۶۳)

د حضرت عمر رضي الله عنه دا روایت په ترمذي ص ۱۶۹ ج ۱ باندې بغیر د سند نه ډیر واضحه روایت شوے دے چه هغې کښې دي: "فصلى بعد ما طلعت الشمس" حضرت عمر د نمر ختو نه پس د طواف دوه رکعته نفل اُوکړل۔

بهتر دا دي چه د طواف نه پس زر، دوه رکعته د طواف اُوکړے شي۔ او په مسجدِ حرام کښې د مقامِ ابراهیم سره نزدے اوکړے شي۔ بغیر د عُذر نه دده په ادا کولو کښې تاخیر کول یا د مسجدِ حرام نه بهر ادا کول خلافِ سُنت او مکروه دي۔

د حضرت عمرؓ د بهتر والي دا هوله طریقے پریښودل او د مسجدِ حرام نه لرے په ذي طُوی مقام کښې تاخیر سره اداکول دده خبرے واضح دلیل دے چه حضرت عمر رضي الله عنه په تحقیق کښې د سحر مانځه نه پس د طواف دوه رکعته کول صحیح نه دي۔ بیا د دوي دا عمل د صحابهٔ کرامؓ و د وړاندے وو لیکن یو صحابي وړاندِ اعتراض اُونه کړو۔

(عمدة القاري شرح بخاري ص ۲۷۲ ج ۹)

(۵۰۸) وَعَنْ عَائِشَةَ رض اَنَّهَا قَالَتْ اِذَا اَرَدْتَ الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ بَعْدَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ اَوِ الْعَصْرِ فَطُفْ وَ اَخِّرِ الصَّلٰوةَ حَتّٰى تَغِيْبَ الشَّمْسُ اَوْ حَتّٰى تَطْلُعَ فَصَلِّ لِكُلِّ اُسْبُوْعٍ رَكْعَتَيْنِ (مصنف ابن ابي شيبة)

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه کله ته د سحر یا مازیگر مونځ نه پس د طواف اراده اُوکړے نو طواف اُوکړه او مونځ روستو کړه تر دے چه نمر پریوزي یا نمر را اُوخیژي بیا هر اُوه چکرو د پاره دوه رکعته نفل کوه۔

حافظ ابنِ حجر شافعیؒ په فتح الباری شرح د بخاری ص۳۹۲ ج۳ باندِ فرمائیلی دی:

وَهٰذَا اِسْنَادٌ حَسَنٌ — او دا سند حسن دے۔

**تنبیه** د حضرت جُبیر بن مُطعم رضی الله عنه موفوع حدیث دے:

(۵۰۹) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَابَنِيْ عَبْدِ مَنَافٍ لَا تَمْنَعُوْا اَحَدًا طَافَ هٰذَا الْبَيْتَ وَ صَلّٰى اَيَّةَ سَاعَةٍ شَاءَ مِنْ لَيْلٍ اَوْ نَهَارٍ۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه اے بنی عبد مناف! چه کوم سړے د شپے یا د ورځے په څه حصه کښ د بیت الله طواف کول غواړی او مونځ کول غواړی نو تاسو هغه مه منع کوئ۔

(ابوداؤد، نسائی، ترمذی، ابن ماجه، مشکوٰة ص۹۵ وصححه الترمذی)

دد ے جواب دا دے چه په مکروه وختونو کښ د مونځ نه منع کولو احادیث متواتر دی څنګه چه مخکښ تیر شو او دا خبر واحد پریخودلے شی۔ دویم په دیکښ د انتظام والو ته خطاب دے چه تاسو هیڅ یو مسلمان د طواف او مونځ نه مه منع کوئ۔ د هغوی مقصد دا دے چه منتظمین د عام مسلمانانو باندِ په بیت الله شریف کښ پابندی مه لګوئ او هغوی پریشانه کوئ مه۔ دا یو انتظامی بندوبست دے او دد ے حدیث رُخ انتظامیه طرفته دے۔ مونځ کولو طرفته نه دے۔ مونځ کونکو ته هغوی بار بار صفا وئیلی دی چه په مکروه وختونو کښ مونځ منع دے۔ (مرقات شرح مشکوٰة ص۳۸۳ ج۲ مع الوضاحت)

(۵۱۰) د حضرت ابوذر رضی الله عنه مرفوع حدیث دے:

يَقُوْلُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ — رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه

لَاصَلٰوۃَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلَا بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰی يَغِيْبَ الشَّمْسُ اِلَّا بِمَكَّةَ اِلَّا بِمَكَّةَ اِلَّا بِمَكَّةَ ۔ (مسند احمد، دارقطنی، بیهقی، مشکوٰة ص۹۵ وغیره)

د سحر مونځ نه پس تر نمر ختو پورے او د مازیګر مانځه نه پس تر نمر پریوتو پورے مونځ صحیح دے لیکن په مکه کښ لیکن په مکه کښ لیکن په مکه کښ یعنی مکه مکرّمه کښ منع نهٔ دے۔

جواب :- علامه ابن دقیقُ الْعِیْد الشافعیؒ په خپل کتاب "الامام" کښ او محقق ابن الهمام په فتح القدیر کښ ص۲۲۳/ج۱ بانډِ دے حدیث ته په څلورو وجو معلول او ضعیف وئیلی دی چه د هغې تفصیل په نصب الرایه ص۲۵۴/ج۱ باندے لیکلی دی چه د هغې خلاصه دا ده :

هُوَمَعْلُوْلٌ بِاَرْبَعَةِ اُمُوْرٍ، اِنْقِطَاعٌ مَابَيْنَ مُجَاهِدٍ وَاَبِیْ ذَرٍّ وَضُعْفُ اِبْنِ الْمُؤَمَّلِ وَضُعْفُ حُمَيْدٍ وَاِضْطِرَابُ سَنَدِہٖ ۔

دا حدیث په څلورو وجو معلول دے او ضعیف دے۔ سَند متصل نهٔ دے د مجاهدؒ او د اَبُوْذَرؓ په مینځ کښ یو راوی محذوف دے۔ دوېم دے راوی ابن المؤمّل ضعیف دے۔ درېم دے دویم راوی حُمَید هم ضعیف دے۔ څلورم دے په سَند کښ اضطراب او اختلاف دے ۔ انتهی۔

د دے راوی ابن المؤمّل باره کښ امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائیلی دی :

اَحَادِيْثُ اِبْنِ الْمُؤَمَّلِ مَنَاكِيْرُ۔

د ابن المؤمّل حدیثونه منکر او ضعیف دی۔

نقّاد محدّث یحیی بن معین فرمائیلی دی : هُوَ ضَعِیفُ الحَدِیثِ "هغه ضعیفُ الحدیث دے" او ددے دویم راوی حُمید باره کښې امام بیهقی رح فرمائیلی دی : حُمَیدٌ لَیسَ بِالقَوِیِّ ۔ "حُمید قوی نه دے ۔" همدارنګ امام بیهقیؒ دے سند باره کښې لیکلی دی وَمُجَاهِدٌ لَم یُدرِكْ اَبَاذَرٍّ ۔ "مجاهدؒ ابوذرؓ سره ملاقات نهٔ دے شوے ۔" نو دا روایت منقطع دے ۔ (نصب الرایه ص۲۵۴ ج۱)

دمونځ دممانعت متواترا حادیثو په مقابله کښې داسے ضعیف او مجروح روایت نه استدلال کوّل صحیح نهٔ دے ۔ واللهُ اعلم ط

هذا آخر ما اردنا بیانه لنصح اهل الاسلام بتوفیق الله سُبحانهٗ وتعالیٰ وکرمه ومنه و فضله ۶ اَللّٰهُمَّ تَقَبَّلهُ لرضَاكَ وَاجعله لی وسیلة لفلاح الدارین ط آمین

## مکتبۂ دیوبند

محله جنګی عقب قصه خوانی بازار پشاور ښهر ۲ ،

کتابت :۔ خطاط ابوامین ګلزار احمد ۔ صریخ براسته شبقدر فورټ ضلع وتحصیل چارسده

